# تروریزم
# او
# جګړه

## هووارد زین

د محمداکبر کرګر ژباړه

د کتاب پیژندنه:

نوم: تروریزم او جګړه

TERRORISM and WAR

لیکونکی: هووارد زین HOWARD ZINN

ژباړن: محمد اکبر کرګر (له انګلیسی نه)

دیجیتال جوړښت: قاسم آسمایی

دجیتال خپرونکی: د راه پرچم انتشارات

https://rahparcham۱.org

**فهرست**

## دربارهٔ کتاب «ترویزم او جګړه/ تروریسم و جنگ» و پخش دیجیتال آن

جهان ما در اثر جنگ‌های افروخته شده توسط امپریالیسم جهانخوار، دوران پرآشوبی و مصیبت‌باری را سپری می‌کند. این دوران که با ختم جنگ جهانی دوم و ظهور قدرت مخربی دیگری که جهان پساجنگ دوم جهانی را ملکیت خویش محسوب نموده، در سرتاسر جهان باربار جنگ‌های ویرانگری را به راه انداخته، کودتاهای ضد دولتی را جهت به قدرت رساندن عمال خود سازمان داده است که در نتیجهٔ آن میلیون‌ها انسان کشته و معلول شده و کشورهای بی‌شمار ویران گردیده است.

وطن ما یکی از قربانیان جنگ امپریالیسم امریکا است که نخست در حمایت از تنظیم‌های جهادی ساخت پاکستان آنرا آغاز و در سال ۲۰۰۱ به بهانهٔ مبارزه با "طالب" بصورت آشکار به اشغال آن پرداخت و رژیم فاسد تحت حمایت و ادارهٔ خویش را تحمیل و سرانجام با گریز شرمناک، ویرانی‌های بی‌شماری را از خود بجا گذاشت و زمینه را برای تسلط مجدد گروه ارتجاعی "طالب" فراهم کرد.

در راستای افشای جنایات نیروهای جنگ افروز، کتاب‌های بی‌شماری به زبان دری ـ فارسی ترجمه شده است و کمبود چنین کتاب‌ها به زبان پشتو کاملاً محسوس است. محترم اکبر کرگر با ترجمه کتاب «**ترویزم او جګړه**» که در بخشی از آن بصورت مشخص بُعدی از این جنگ و

تروریسم جهانی  در وطن ما، برسی شده است، خدمت شایانی را در این عرصه انجام داده است.

ضمن تهنیت برای محترم اکبر کرگر نسبت ترجمۀ این اثر، پخش دیجیتال آن را در مرحله کنونی که شاهد شکست مفتضحانه امپریالیسم جهانی در وطن خویش هستیم، از طریق انتشارات راه پرچم بسیار بجا و تاثیرگزار میدانم.

به آرزوی اینکه ترجمه‌های بیشتری از قلم کرگر ارجمند در همین عرصه بخوانیم.

با حرمت

قاسم آسمایی

## هووارد زین او تروریزم او جګړه

د ۲۰۰۱ کال د سپتامبر له یوولسمې نیټې وروسته چې کله امریکایي ځواکونو د طالبانو پر ضد له تروریزم سره د مخالفت په نامه کوم نړیوال عملیات پیل کړل، له هغه وروسته د هووارد زین له خوا د تروریزم او جګړې کتاب چې د مرکې په ډول ترتیب شوي و، خپور شو. زما یو دوست دغه کتاب ماته راوسپاره او ما بیا له انګریزي پښتو ته وژباړه.

اوس چې دغه کتاب بیا د چاپ لپاره یې د اړتیا له مخې تابیا شوې ده، اړینه ده چې د سریزې په نامه هم یو څه ورزیات شي.

تر هر څه مخکې اړینه ده چې د اثر د لیکوال په باب لنډ مالومات وړاندې کړو، همدارنګه د پوځي عملیاتو د ادعا په باب هم لږ څه او لنډه رڼا واچوو. اړینه ده چې وښیو او په دې خبرې وکړو چې د سعدي د مشهور شعر مطابق دا روښانه کړو، چې وایي:

شیخي به زن فاحشه گفتا مستی        هر دم به پای دیگران پابستی
گفت شیخا من چنان که گوی هستم   اما تو چنانکه گویي هستي؟

### ۱. هووراد زین څوک دی؟

پروفیسور هوارد زین د امریکا له ډېرو پیاوړو روښانفکرانو څخه دی. نوموړي د جنګ، نژاد پالنې، سیاسي علومو، ټولنیز عدالت او په ځانګړي توګه د تاریخ په باب زیات آثار لیکلي. هغه په روښانه او څرګنده ژبه لیکل کوي او د مسایلو ژورو ته داخلیږي.

سره له دې چې نن ورځ به د هغه عمر له نوي کالو پورته وي، خو د هغه عمر او بوختيا د هغه په روښانه او صريحه ژبه کومه اغېزه نه وه. هغه په خپلو آثارو کې د جنگ او د خلکو د مبارزو په تاريخ خبرې کوي. سره له دې چې نوموړي په دويمه نړيواله جگړه کې د امريکا په هوايي پوځي برخه کې کار کاوه، نن ورځ په ټول قوت سره د جنگ مفکوره غندي او محکوموي يې. د زين لپاره دويمه نړيواله جگړه وروستی جگړه وه، چې کېدای شي له هغه نه ياد ونه وشي. نوموړي په ياده جگړه کې ستر جنايتونه مشاهده کړي او په همدې اساس له جنگ سره سخته کرکه او دوښمني لري.

هووارد زين په يوه کارگره کورني کې په يوه بيوزلي سيمه کې زېږېدلی دی. په ځوانۍ کې يو کارگر و، د دويمي نړيوالي جگړي په اوايلو کې پوځ کې شامل شو. له هغه وروسته د دولت د مرستو په اساس چې له پخوانو سربازانو سره يې کوله، په کولمبيا پوهنتون کې شامل شو او د تاريخ په برخه کې يې د دوکتورا تر درجې پورې زده کړې وکړې.

د جگړي او تروريزم کتاب له انتوني ارناو سره د مرکو په بنياد جوړ شوی او ترتيب شوی دی. انتوني ارناو له هووارد زين سره يو ځای د سوسياليزم د بين‌المللی ټولنې غړی و. په همدې مرکو کې د جنگونو تاريخ شاليد ته هم پاملرنه شوې ده.

دا کتاب چې په افغانستان باندې د امريکا د بمباريو په شرايطو کې ترتيب شوی دی، په پايله کې په سيمه کې او په منځني ختيځ کې په وروسته پايلو هم خبري شوې دي. هووراد زين په دې کتاب کې جوتوي چې امريکا څرنگه يو عظيم افغان ولس سپك او تحقير کړ. له آسمانه يې د کانسرو

قطبي او يو يو ډالر ورته واچول، خو له دې ترمخه يې خپلو عمالو ته پوره زمينه برابره کړې وه. لومړي يي د جهاد په نوم يو منحط لښکر وروزه او بيا يي دغه نقش طالب ته وسپاره، چې تر ننه لا روان دی.

## ۲. دولتي او نادولتي تروريزم

د يوې فرعي سريزي په توګه يادونه کوم، چې د افغانستان د اوسنۍ غميزې پيل په نني متن کې له دويمې نړيوالې جګړې وروسته پيل شو. دونيا دوه قطبي شوه، د امريکا متحده ايالاتو څو واري فشار وارد کړ، چې افغانستان له ايران او پاکستان سره يو ځای د بغداد په نظامي تړون کې شامل شي. د پښتونستان له داعيې لاس واخلي، له پاکستان سره نږدې اړيکې ولري، هڅه وکړي چې د پښتنو د حق خودارادیت يا خپلواکۍ مسأله عامه ذهنيت ته داخله نه شي. له شوروي اتحاد نه واټن ونيسي. دا ټولې خبرې او داسې نورې زياتي په هغه پروپوزل کې راغلې دي، چې د هلمند د پروژې د سرسلاکار له خوا ليکل شوی او بيا په واشنګټن کې د افغانستان په سفارت کي ژباړل شوی او ټايپ شوی او له هغه وروسته پادشاه محمدظاهر خان او نورو مشرانو ته وسپارل شوی و؛ خو د هغه وخت افغان مشرانو دې وړانديزونو ته په احتياط ځواب ورکړي او د افغانستان ناپيلتوب يې ساتلي وو.

د لويك ادمك د ليکنو له مخې افغان مشرانو څو وارې، امريکا متحده يالاتو ته د مرستي او په هېواد کې د اقتصادي بدلون غوښته کړي وه؛ خو هغوی دا غوښتنه نه وه منلي، ان تر دې چې د افغانستان او پاکستان پرتلنه يې د «خر سوار او موټر سوار» په عبارت کړې وه. افغانستان اړ شو چې د عصر او دوران د غوښتنو له مخې له شمالي ګاونډي نه مرستې وغواړي.

دا کار وشو او دې بهیر بیا یو بل پړاو را د بره کړ.

کله چې شوروي په افغانستان کې ښکېل شو، همدغه نقطه وه چې د افغانستان غمیزه پیل کېږي. په دې مانا چې امریکا، لوېديځ او په تېره پاکستان خپلو موخو ته د رسېدو لپاره پانګونه کوي او دا پانګونه په جهادي ډلو او ټپلو په افغانستان کې د ترهګرۍ پیلامه، په هېواد کې د توندلارو مذهبي افراطي ډلو له خوا پیل شوه. د کابل پوهنتون، لغمان، پکتیا او پنجشېر پېښې د اوسني پاتې نسل له حافظې نه لیرې شوې نه دي.

په هر صورت جهادي غوبل او طالبي ناورین د هر افغان په حافظه کې تل ژوندی دی، خو د امریکا متحده ایالات له تروریزم سره د جګړې په موخه دې سیمې ته راغله.

همدا ځواك په نړۍ کې یا د ځمکې په سیاره کې د خپلو کړنو یوه ماضي لري. پوښتنه دا ده چې آیا تروریزم په کوم لوري کې موقعیت لري. په دې باب د امریکا د مشهور سیاسي او فرهنګي شخصیت نوام چامسکي په نظریاتو سره اوږه په اوږه د نژادي توپیر، بې عدالتۍ او همدارنګه د جنګ او تېري په وړاندې مبارزه کوي، لیدلي شو.

نوام چامسکي په خپله یوه مرکه کې د مشهور ژورنالیست اندره اولچك سره په خبرو کې لیکي:

«کله چې کریستف کلمب د امریکا په قاره ګام کېښود، هلته د ۸۰ تر ۱۰۰ میلیونه بومي خلك اوسېدل. هلته تمدن وجود درلود، ښارونه موجود ول. تجارتي روابط موجود؛ خو په ډېر لږ وخت کې په سلو کې ۹۵ نفوس په دغه نیم کره کې له منځه ولاړ. دغلته چې نن ایالات متحده امریکا ده، لس میلیونه بومي خلکو ژوند کاوه، خو د ۱۹۰۰ کال د احصاییي له مخې

دغه شمېر ۲۰۰ زرو تنو ته راکم شو. دا ټول ترخه حقایق دي چې د زیاترو روښانفکرانو سترگې پرې پټېږي.»

له دې ویناوو څخه چې د حقایقو له مخې ده، نن هم هماغه سیاست او تگلاره د امریکایانو په تن او وجود او عمل کې ځای لري. چامسکي زیاتوي: «نن امریکا په دې ایډیا مسته ده، چې که نن موږ فوسیلي محصولات ترلاسه کړو او هغو د استخراج تکنیك ته وده ورکړو. د سعودي عربستان په څېر له انرژي پلوه خودکفا شو؛ نو بیا امریکا کولی شي په زیاتره هېوادونو خپله سلطه ټینگه کړي. همدا خبره د اوباما په خبرو کې هم په ۲۰۱۲ کې څرگنده شوه.»

هلوکاست اوجینوساید د امریکایي سیاست بنستیز تیزس دی، هغوی د خپلو موخو په خاطر هر هغه عمل ته لاس اچوي چې د بشریت په تاریخ کې یې ساری نه وي.

اندره ولچك اروپایي ژورنالیست چې په امریکا کې یې ژوند کاوه، له نوام چامسکي سره په خبرو اترو کې وایي:

په هغو ټولو هېوادونو اوسیمو کې چې د اروپا د استعماري امپراتوریو لاس‌بری و، هلته د اجباري کارونو لومړنۍ اردوگاه یا کمپونه نه یوازې په المان کې رامنځته شوي؛ بلکې په مستعمره هېوادونو یعنې کینیا او جنوبي افریقا کې د بریتانیا د امپراتورۍ په وسیله رامنځته شول. هغه هلوکاست چې په اروپا کې رامنځته شو او یهودیان او کولیان یې قربانیان وو، لومړنی هلوکاست په المان کې نه و؛ بلکې له هغه دمخه د امریکا د قارې په جنوب دماغه کې او په زیاترو نورو سیمو کې د عامه وژنې او قتلونو سب و. المانیانو د «هه ره رو» د قبیلې اکثره خلك په نامیبیا کې له منځه یوړل؛

خو په دې باب نه په المان او نه خو په نورو اروپايي هېوادونو کې خبرې رامنځته شوې. دغه جمعي وژنه نه توجيه درلوده او نه هم منطق، دا يوازې له بوميانو سره د المانيانو کينه او کرکه وه.

دلته چې موږ د استعمار او اشغالگرو په باب څه وايو، کومه نوې خبره نه ده. کارل مارکس د خپلو ژورناليستي فعاليتونو په لړ کې د انگليس د استعمار په باب ځيني رپوټونه چمتو کړي چې د «پيرامون استعمار» په کتاب کې چاپ شوي دي. هغه وايي: «موږ بايد له ياده ونه باسو چې دغه له وړتيا څخه بې برخې ژوند چې د هند ولسونو درلود، بې‌حرکته او د گياه په څېر و. له بلې خوا په خپل مخالف قطب کې د وحشي ورانوونکو او په پټو سترگو د بې‌پيزوانه او نه مهارېدونکو ځواکونو د رابرسېره کېدو سبب شو. په هندوستان کې يې ان له وژنو او قتلولو څخه مذهبي دود جوړ کړ. بايد له ياده ونه باسو، چې کوچني کلي او ټولنې له هغو اختلافاتو سره چې په خپلو منځو کې يې درلودل، د مريیتوب ټاپه يې هم درلوده، نو استعمار د دې پر ځای چې انسان د پيښو او واقعاتو فرمانبردار مقام ته لوړ کړي، برعکس يې د هماغه پېښو او واقعاتو مريي کړ، چې دوی د ټولنې دا خپل‌سري تکامل په نه بدلېدونکي طبيعي قسمت بدل کړ. په همدې ډول د طبعيت قهرجن کيت يې ترې جوړ کړ. د دغه روش حقيقت په دې کې راڅرگندېږي چې انسان دغه د طبعيت بادار او حکمران په اطاعت او درناوي سره د شيادي او سابالا په نو م غوا ته گونډه ووهي.»

نوام چامسکي يادونه کوي چې په وروستيو کلونو کې په شرقي کانگو کې ډېرې تراژيکي پېښې وشوې. احتمالاً له ۳ نه تر ۵ ميليونو پورې کسان ووژل شول. څوك د دغه جناياتو مقصر دی؟ دا قربانيان د پوځي ملېشو له خوا ووژل شول. خو د دې مليشو شا ته څو ملیتي شرکتونه او حکومتونه

وو. اندره ولچك زياتوي چې په کنگو کې له ٦ نه تر ١٠ میلیونو خلکو ووژل شول.

همدارنگه د امريکا د متحده ایالاتو په تاريخ کي يوه ډېره له شرم او خجالت نه ډك داستان په ويتنام باندې د هغو يرغل و. په ١٩٦٠ كال کې کنيدي د متحده ایالاتو هوايي ځواکونو ته امر وکړ، چې جنوبي ويتنام بمبارد کړي. هغه پوځیانو ته کامل اختيار ورکړی و، چې په ځنگلونو او کروندو باندې ناپالم او کیمیاوي بمونه وغورځوي. دوی داسې کارروايي وکړه، چې هدف يې د میلیونونو کسانو لیرې کول او تېښتې ته اړ کول و، چې خپل کلي ښارونه او د ښارونو شاوخوا تشې کړي.

چامسکي وايي: «د دغه کيمياوي و سلوکارولو اثرات دا دي چې تر اوسه لا له خلکو قرباني اخلي. که د سيگون روغتونونو ته ولاړ شئ، دا قربانيان ليدلي شئ. کولي شئ ناقص‌الخلقه جنينونه ووينئ او هغه ماشومان چې له ميندو زېږېدلي او يا راځي تول تر دې اغېز لاندې دي چې د ويتنام خاوره يې له زهرو ډکه کړي وه.»

د امريکا متحده ایالاتو د B۵۲ الوتکو په وسیله د لاوس او کمبوديا کلي بمبارد کړل چې دا دوه هېوادونه له ويتنام سره هم‌غاړي نه شي. ميليونونه خلك يې ووژل. د نهو کالو په دوران کې (١٩٦۴ – ١٩٧٣) دوه ميليونه ټنه بمونه په لاوس ورپرېوتل او د بمونو هر مخزن په سلگونو نور کوچني کروي شکله بمونه درلودل، تر اوسه لا په زرگونه هغه نه دي چاودلي او په خاورو کې پټ دي.

اندره ولچك ليکي: «زه يو وار بيا نسل وژنې ته اشاره کوم، دا شمېره چې ترهوونکي او له ډاره ډکه ده، په تېر کال کې کله چې ما فيلم ډکاوه، «بن

کالالا» د کانگو په جمهوریت کې د جمهوري ریاست یو نامزد وویل چې مور د ٦ نه تر ٨ میلیونه خلکو قربانیانو په باب خبرې کوو.

خو ځینې وایي د قربانیانو شمېر لس میلیونه و. په رواندا کې په ۱۹۹۴ کې ۸۰۰ زره کسه وو، خو نړیوال پر هر څه سترګې پټوي او د کانګو د ۸ تر ۱۰ میلیونو قربانیانو خبره نه کوي.

نوام چامسکي د افغانستان په باب د لوېدیځو ژورنالیستانو له وجدانه پرده پورته کوي او لیکي: «کله چې امریکا په افغانستان حمله کوله، زه په اسلام آباد کې وم. زیاتره ژورنالیستان د دې لپاره چې د جنګ صحنې ته نږدې وي، اسلام آباد ته راتلل. زیات شمېر خبرنګاران هلته راټول وو. هڅه یې کوله د افغانستان د جنګ په باب رپوټونه جوړ کړي. هماغه داستان تکرارېده. د هوټل په بار کې کېناستل، څښل یې کول او کار یې کولو. یو وار یو امریکایي راکټ په کابل کې د الجزیرې تلویزیون په ودانۍ ولګېد. هغه یې ویجاړه کړ، ویل یې چې دې هدف کې اشتباه شوې وه. د راپورترانو عکس‌العمل دا وو چې د دې خبر په اړوند یې په ملنډو ویل او ټول په دې موافق وو چې دا حمله د هغه ودانۍ د تخریب لپاره شوې وه، خو یو یې هم حاضر نه شو، چې رپوټ ورکړي. دا ډول پېښه د اردن په لوېدیځه څنډه کې هم شوې وه چې راپورترانو سم رپوټ نه چمتو کاوه.

پورته چې مو څه وویل، دا څو لنډ مثالونه و. په معاصر تاریخ کې او همدارنګه د استعمار او له هغه وروسته د امپریالیزم په تاریخ کې داسې بېلګې بې شانه ډېرې دي. ترهګري یا تروریزم نوی عنوان او سرخط دی. دا سرخط په زوره مغشوشېږي، چې څوك پوه نه شي چې اصلي ترهګر څوك دی. ترهګر هغه څوك دی چې ترهګر زېږوي. هم په خپل عمل سره

چې د عکس العمل په توګه يې راهڅوي او هم يې پخپله تنظيموي او په وسلو او مالي لحاظ يې تمويلوي. په افغانستان کې يا د افغانستان په مورد د ترهګرۍ لوبه دويم واريانت دی. جهاد د محمد داوود د حکومت پرضد پيل شو، جهادي په اصطلاح مشران په هماغه وخت کې وتښتېدل. هغوی چې بارداره شول طالبان يې وزېږول او طالبان چې بارداره شول اوس يې آی اس اس يا داعش زېږولی دی.

**۳. بلهاري افغانستان**

په ۲۰۰۱ کال اکتوبر کې د امريکايي پوځونو له خوا د افغانستان اشغال پيل شو. نن د افغانستان عمليات د امريکا لپاره په نړۍ کې ډېر اوږود جنګ ګڼل کېږي؛ خو کوم جنايات او ډله ييزې وژنې چې له پيل نه تر اوسه په افغان ولس تپل شوې دي، ټول حاضر نسلونه يې شاهدان دي.

د لومړي وار لپاره په ۲۰۰۱ کال د اکتوبر په ۷ نېټه د يکشنبې په شپه د امريکا او انګلستان ځواکونو په کندهار، ننګرهار، کندز، جوزجان، لوګر، تخار، نيمروز او غزني کې د کروز ميزايلو يرغلونه وکړل. په درې اوونيو کې له زرو کسانو زيات خلك ووژل شول.

د ګاردين د رپوټ له مخې په هماغه وخت يو کاروان چې د ختيځو ولاياتو قومي مشران پکې و، بمبارد شو او ٦٥ کسه پکې ووژل شول. د ۲۰۰۱ کال په ډسمبر کې ۳۸۰۰ غيرپوځي خلك د بمبارد په وسيله ووژل شول.

په ۲۰۰۷ کال کې امريکايي جنګي الوتکو هرات ته نږدې بمبارد وکړ، په ۴۲ کليو کې ۱٦۰۰ ماشومان ښځې ووژل شوې او ۱۰۰ کورنۍ بې کوره شوې.

د شینډنډ په عزیزاباد کې په ۲۰۰۸ کال د بمبارد په اثر ۹۰ تنه غیرپوځي کسان ووژل شول. په فراه ولایت کې ۱۴۵ کسه ماشومان او مېرمنې ووژل شوې.

په ۲۰۰۹ کال کې امریکایي الوتکو په نرنګ ولسوالي کې په یوه مدرسه بمبارد وکړ، ۱۸ تنه یې ونیول، لاسونه یې پرې وتړل او بیا یې ووژل.

په ۲۰۱۲ کال په واشنګټن کې یو امریکایي افسر د «ساتل» په محکمه کې اعتراف وکړ، چې د کندهار پوځي اډې ته نږدې یې په یوه کلي برید وکړ او ۱٦ کسان چې زیاتره یې ماشومان و، ووژل او ان د قربانیانو اجساد یې وسېځل.

د ۲۰۱۵ کال په اکتوبر کې د کندز په روغتون بمبارد وکړ، چې ۴۲ کسه بېګناه خلك یې ووژل.

د پیل نه تر ۲۰۱٦ کال پورې نږدې ۱۷۳ زره کسه افغان ملکي وګړي ووژل شول او همدومره لا زیات ټپیان شول.

امریکایانو په روان کال کې ۳۵۰۰ بمونه غورځولي دي، خو دوی د ملکي خلکو په وژلو سترګې پټوي.

په همدغه کال کې دغه بمبارد وروستي حد ته ورسېد. په ۲۰۱۹ کال کې دغه بمبارد ۷۴۲۳ بمونو ته ورسېد.

د دونالد ترامپ په راتلو سره ټول قوانین او د مخنیوي اصول له پامه لیري شول او په شدت د ملکي خلکو وژنه زیاته شوه. دوه کاله دمخه امریکایانو د دبمونو مور د ننګرهار په اچین کې وکاروله.

د امریکا د دفاع پخواني دفاع وزیر د دې بمب په باب وویل چې دا بمب

په ایران کې د ځمکې لاندي غني سازۍ د له منځه وړلو په هدف طرح شوي و. دغه بمب ۹ متره اوږودوالی او لس ټنه وزن درلود او هدف یې د جي پي اس په وسیله پیدا کاوه او د دې بمب د قدرت د زیادښت لپاره یې د دالمونیوم پودر ورزیات کړي وو.

په دې اساس د بمبونو مور کارونه په اچین کې هیڅ توجیه نه لري، بلکې امریکا غوښتل دغه وسله دلته وازمایي، هیڅ بل ځای ورته موثر نه و او همدارنگه په دې وسیله یې د امریکا دوښمنو یا رقیبو هېوادونو لکه روسیې او چین ته د یوه خبرداري مانا درلوده.

دا له منطق نه لیرې خبره وه چې داسې بمب په دغه یاده سیمه کې وکاروي. دا ځکه چې ډېر زیات فشار په ځمکه وارد شو. هغه زهري مواد چې په بمب کې و، د یو نیم کیلو متر په شعاع یې ځمکه زهرجنه کړه. هدف هم دا و چې دغه شعاع وازمایي.

داعش په ټول ځواك سره په افغانستان کې موجودیت لري، دې بمب ونه شول کړای خلکو ته د ترهګرۍ په ضد د جګړې ځواب ووایي. په داسې حالاتو کې په افغانستان حاکم واکمنان اوس د تاریخ له سختو پوښتنو سره مخامخ دي.

پوښتنه دا ده چې ولې د "مور بمب" یا "مادر بمب" که واقعاً یې هدف ترهګر وي په سوریه او عراق کې چې د داعش مرکزونه لري نه کاروي. په پاکستان یې ولې نه کاروي چې د ترهګرو د روزنې مدرسه ده. که هدف یې ترهګر وي، ولي یې د ترهګرو د روزنې په کمپونو نه کاروي. د طالبانو پر ضد عملیاتو کې دوی وکړای شول، په څلویښت ورځو کې د طالبانو جرړې ختمې کړي؛ خو په تدریج سره د دې لپاره چې د خپل اشغال د

دوام دلایل پیدا کړي او طالبان بیا حاکم کړي، په ورور ورو یې طالبان په سیمو لاسبري کړل. هغوی چې پرون ترهګر وو، نن د افغانستان له دولت پرته ورسره کښېني او پریکړې کوي.

نن دا خبره روښانه ده چې ترهګر یوازې ډلې او وسله وال ګروپونه نه دي، بلکي د نړۍ لوی طاقتونه دي، چې هم ترهګر دي هم ترهګر روزي او هم ترهګر تمویلوي. دا کتاب «جګړه او تروریزم» همدا مسأله روښانوي.

د امریکا او د هغه د پلویانو جګړه په اصطلاح د ترهګرۍ پر ضد نه؛ بلکې د ترهګري د روزني په موخه ده. دا مالومه نه ده چې د دې لوبي اصلي قرباني یعنې افغانستان ځمکنۍ بشپړتیا او سلامتیا به څرنګه وي؛ خو اوسني زمامداران به یې هم تاریخ ته ځواب ووایي.

محمد اکبر کرګر

۲۰۲۰ – مارچ – ۳۱

**په متن یو یادښت**

دا اثر د ۲۰۰۱ کال له سپټمبر څخه د ۲۰۰۲ کال تر جنوري پورې موده کې له هووارد زين سره د انتوني ارنوف د يو لړ مرکو په بنسټ برابر شوی دی. دغه مرکې په کیمبرج بوستون، ماساچوست، پرویدینس راو دایسلند او نیویارک سیټي کې له لیکوال سره مخ په مخ او د تیلیفون له لارې ترسره شوې دي او وروسته د ارنوف له خوا ايډيټ او د ليکوال له خوا کتل شوې او پراختيا ورکړل شوې ده. يادښتونه او نور جزئيات، اخځليکونه (ريفرنسونه) يې د ايډيټ او بياکتنې په بهير کې ورزيات شوي دي. ځينې مواد چې په پنځم فصل کې راغلي دي. د ارنوف او ليکوال له خوا دا ۲۰۰۱ کال په اکتوبر کې په واشنګټن دي سي کې په (Politics and Prose Bookstore) کې د ګډو خبرو اترو په ترڅ کې برابر شوي دي. په لومړي فصل کې يوه مسأله چې د منځني ختيځ په باب ده، د هغې مرکې په اساس برابر شوې ده چې د ښوونې او روزنې د موسسې د رسنيو وسايلو (Media Education Foundation) له خوا له ليکوال سره د ۲۰۰۱ کال په اکتوبر کې په بوستون پوهنتون کې ترسره شوې ده. دغه راز د لومړي او دريیم فصل ځينې مطالب له ليکوال سره په برلينګتون او ويرمونت، کې د ۲۰۰۱ په نومبر کې ترسره شوي دي.

# لومړی څپرکی

## د سپټمبر یوولسمه

***تاسې د هغو کسانو په وړاندې چې د سپټمبر د یوولسمې ترهګرې پېښې په ځواب کې د پوځي حل لارې پلوی کوي څه ځواب وایاست؟***

موږ باید په دې وپوهېږو چې خلکو سخت درد او کړاو زغملی دی او د بدل او غچ په چېغو او عذاب هم پوهېدای شو، خو موږ باید داسې سملاسي او هیجاني عکس‌العمل ته چې حکومت یې غواړي، اجازه ورنه کړو، بلکې د داسې عمل ملاتړ وکړو چې په تفکر او غور ولاړ وي او دا چې څرنګه کولی شو د هغه زیات تېري مخه ونیسو چې یا د ترهګرو له خوا او یا دولت له خوا ترسره کېږي.

له ۳۰۰ میلیاردو څخه د زیاتو ډالرو له پرله پسې لګښت څخه چې هر کال په پوځي برخه کې ترسره کېږي، په باوري توګه یې د تروریزم په خطر هېڅ اغېزه و نه کړه. که موږ رښتینی امن غواړو، نو موږ باید په نړۍ کې خپلې څېرې او اکر ته بدلون ورکړو. د خپل پوځي ځواک په وسیله د نورو په چارو کې لاسوهنه بس کړو او د نورو هېوادونو په اقتصادي شتمنیو کنترول پای ته ورسوو.

«د ۱۹۹۷ کال د دفاعي ساینس بورډ د رپوټ له مخې، تاریخي حقایق له

ترهګرۍ سره د متحده ایالاتو پیاوړې اړیکې څرګندوي، چې پخپله متحده ایالات په نړیواله سطحه کې په کې ښکېل دي او د متحده ایالاتو پر ضد تروریستي حملې مخ په زیاتیدو دی.» دغه ښکېلتیا د پوځ لپاره به تعبیر کېږی او په لاس‌وهنې سره پوښل کېږي. موږ د نړۍ په زیاترو هېوادونو کې سترې پوځي اډې لرو چې د متحده ایالاتو دولت یې نن سبا په چټکۍ سره پراخوي. دا کار سملاسي او په څرګنده د شخړې د پیدا کېدو سبب کېږي.

هغه لاره چې اوس یې بوش موږ ته له تروریزم سره د مبارزې په توګه وړاندېز کوي، یوازې هغه څه دي چې نورو ولسمشرانو لکه ریګان، کلنتون، دواړو ګوندونو یې لا له مخه وړاندیز کړې وه. دا په ټوله نړۍ باندې د کنترول لپاره یوه هڅه ده. د تروریستي حملو وحشت چې موږ د سپټمبر په یولسمه د ترهګرۍ د بریدونو د وحشت مزه وڅښله، د نړۍ په نورو برخو لکه په جنوب ختیزه آسیا، عراق او یوګوسلاویا کې خلکو لا له مخه زموږ د بمباریو په نتیجه کې تجربه کړې وه. د ترهګرۍ د خلکو له خوا ترسره شوه او موږ په وسله واله توګه ترې ملاتړ وکړ. دا چې پوځي حل‌لارې ته دوام ورکول کېږي، په عواقبو یې باید پوه شو.

### ***تاسې دې احساس ته چې موږ باید ځینې کارونه ترسره کړو، څه ځواب وایاست؟***

دا چې تاسې باید یو څه ترسره کړئ، زه ورسره موافق یم. خو داسې باید و نه شي. تاسې باید یو څه وکړئ، په دی اساس "بم" که چېرې تاسې باید یو څه وکړی آیا دا یوازینی امکان دی، چې تاسې یې کولی شئ؟

تاسې باید په جګړه ورګډ شئ، څکه چې غواړئ ژر باید یو څه کار وکړئ. نو تاسې تېری کوئ څکه چې نور نه غواړئ چې انتظار وکړئ. نو نه غواړئ، چې شخړه هواره شي. تاسې نه غواړئ چې خپل مغز په کار واچوئ او له خپل استعداد او عقل نه کار واخلئ. تاسې نه غواړئ، له هغو ظرفیتونو چې په خاص ډول بشریت ته ورکړل شوي دي، ګټه واخلئ. د روغتیایي چارو زده‌کوونکو ته چې لوړه ورکول کېږي، لومړۍ قاعده دا ده «چې زیان مه رسوئ». فکر کوم چې دا ډېره ښه مشوره ده. خو په افغانستان کې په بمباریو سره موږ ستر زیان رسوو. څینو خلکو وویل چې موږ زیات خلک نه وژنو. پنتاګون وایي مالومه نه ده چې څومره خلک وژل کېږي. واقعیت دا دی چې دوی هېڅ غور نه کوي.

په واقعیت کې تاسې په حکومت هېڅ باور نه شئ کولی. خو رپوټونه چې د ډله‌ییزو ارتباطي وسایلو له غلبېل نه راووتل، د ملکي خلکو د وژنې په اړوند د واقعي ارقامو ډېره کوچنۍ نمونه وه. پروفیسور مارک هیرولډ چې کورني او بهرني مطبوعات یې مطالعه کړي دي او راپورونه یې راټول کړي دي، څرګندوي چې زموږ په بمباریو ټول ۳۷۰۰ تنه وژل شوي دي.

همدارنګه تاسې باید د خلکو د سترې کتلې په باب فکر وکړئ، چې ښایي له یو میلیون څخه زیات بې کوره او بې ځایه شول، ښارونه او مرکزونه یې پرېښودل او د بمونو د رالوېدو په اثر وتښتېدل او ووتل. د کډوالو یو کمپ چې هرات ته نژدې دی او د «مسلخ» په نوم یادېږي، له ۳۵۰۰۰۰ نه زیات افغان کډوال پکې اوسېدل او هره ورځ ترې ۱۰۰ تنه له لوږې او فشارونو له کبله مړه کېدل. دا مطلب د ګاردین د ۲۰۰۲ کال د جنوري د میاشتې په یو رپوټ کې راغلی و. دغه کمپ د اتوپیایي سبک د بشري ناورین له یوې ترانګې سره ورته والی درلود.

د کډوالو بهیر د بوش د بمباریو له وعدې سره سم ډېر ژر پیل شو. دا یوه امریکایي وعده وه، چې پرې حساب کېدای شي. دا له هغو وعدو نه یوه وه. همدارنګه تاسې کولی شئ چې د دغه کورنیو انځور ووینئ چې له خپل دار و ندار سره چې په شا او په واګون کې یې انتقالولی شول او هڅه یې کوله چې له بندر څخه تېر شي، هلته پراته وو. موږ په افغانستان کې وېره خپروو. هغه خلک چې په کابل او د افغانستان په نورو ښارونو کې اوسېږي، اړ وو چې د بمباریو له وېرې سره ژوند وکړي، آیا لاندې اوسېدلي یې؟ تصور وکړئ کله چې تاسې ډېره مجهزه تکنالوجي لرئ او په یو وروسته پاتی هېواد کې دغه ترهوونکی ماشین له ډېرو کنګوونکو آوازونو سره په هوا راځي او د ډېرو سختو او ناوړه چاودنو سبب کېږي، څه ډول به وي؟

دا به سمه نه وي چې تروریزم ته د نورو خلکو په ډارولو سره ځواب ورکړل شي. پر دې سربېره دا به مرسته ونه کړي. ښایي تاسې ووایي: «هوکې دا د خلکو وېرول دي؛ خو دا یو ګټور کار دی، ځکه په همدې ډول به تروریزم پای ته ورسېږی.» خو څومره سلیم عقل پکار دی چې پوه شئ چې نه شئ کولی، د بې توپیره بمباریو په اثر په افغانستان کې تروریزم ته د پای ټکی کېږدئ. «موږ اوس د القاعدې څو روزنیز مرکزونه ویجاړ کړل.» دوی په چا ملنډې وهي؟ څومره ساعتونه وخت نیسي چې دغه مرکزونه بېرته جوړ کړي؟ څومره آسانه ده چې له یوې سیمې نه بلې سیمې ته لاړ شي؟

***جورج بوش وویل چې متحده ایالات هدف دی، ځکه چې تروریستان زموږ د آزادۍ او دموکراسۍ پر ضد دی. آیا دا واقعاً یوه سمه څرګندونه ده چې ولې له متحده ایالاتو سره دومره زیاته دوښمني کېږي؟***

ښه دا ډېره ښه لاره ده، که تاسې د جنګ لپاره د ولس ملاتړ غواړئ، نور به وايي چې څه پېښېږي. دا ساده خبره ده چې ووايئ دوی زموږ آزادي نه خوښوي او دوی زموږ دموکراسي نه غواړي. سمه ده زه فکر کوم چې په منځني ختيځ کې ډېر خلک شته چې ډېره دموکراسي غواړي او ډېره آزادي غواړي. دا د هغوی له ويناوو جوتېږي چې هغه خلک چې غواړي په متحده ايالاتو باندې بريد وکړي څه اندېښنه لري. دا هغه څه نه دي چې موږ يې په د ننه کې ترسره کوو او څومره آزادي چې موږ يې لرو، بلکې هغه څه دي چې موږ يې په بهر کې ترسره کوو. هغه څه چې هغوی يې په قهر کړي دي، په سعودي کې د عسکرو ځای په ځای کولو څخه عبارت دي، اسراييلو ته بې له اندازې زيات پوځي او اقتصادي ملاتړ دی، په عراق باندې د بنديزونو لړول دي، چې د هغه هېواد د ويجاړېدو سبب شو او بې‌شمېره خلک يې ژوبل کړل. دوی په څرګنده توګه روښانه کړه چې څه شی ورته ستونزې پېښوي.

دا مسايل په بيا بيا سره راپورته شوي دي. د لندن د انډيپندنت ورځپاڼې ژورنالېست رابرت فکس له اسامه بن لادن سره ان هغه وخت چې لا بن لادن د اسلام د مذهبی سمبوليزم په توګه ګمارل شوی و، دوه وارې مرکه و کړه، له دغې مرکې څخه جوتېږي چې بن لادن په سعودي عربستان کې د متحده ايالاتو په پوځي حضور او په اسراييلو او عراق کې زموږ په سياست باندې په غوسه و.

زه فکر کوم دلته په اسامه بن لادن پورې اړونده يوه ساده ازموينه ده. په دې ډول چې يا خو دا زموږ دموکراسي او کورنۍ آزادي ده او يا دا چې زموږ بهرنی سياست دی. ساده ازمايښت دا دی چې آيا له ۱۹۹۰ کال څخه تر مخه اسامه بن لادن کوم لوري ته ولاړ؟ مخکې له هغه چې متحده

ایالات خپل پوځ په سعودي عربستان کې ځای پرځای کړي او د عراق پر ضد جگړه پیل او پر ضد یې بندیزونه وضع کړي، موږ له ۱۹۹۰ نه تر مخه په دننه کې دموکرات او آزاد وو. لکه څرنگه چې نن ورځ یو، خو اسامه بن لادن په دغه سبب نه و متاثره شوی. هغه زموږ په لوري کې و او موږ د هغه په خوا کې وو. تر هغې چې په افغانستان کې واک تر لاسه شي، د اسامه بن لادن د مخ اړولو مطلب څرگند دی. دا له آزادۍ او دموکراسۍ سره له سره تړاو نه لري؛ بلکې دا د متحده ایالاتو له بهرني سیاست سره تړاو لري او د څرخیدنگ او مخ اړولو دا ټکی د ۱۹۹۰ – ۱۹۹۱ په پېښو کې نغښتی دی.

### ***متحده ایالات ولې په عراق او منځني ختیځ کې له زیات او فوق العاده حضور سره دومره زیاته مینه لري؟***

سمه ده، زما په فکر سخته به وي چې ووایو ولې متحده ایالات د منځني ختیځ په اړوند دومره اندېښنې لري. تاسې دا پوښتنه په یوه ټکي کې ځواب کولی شئ: «تېل». د دویمې نړیوالې جگړې پر مهال د متحده ایالاتو حکومت پرېکړه وکړه چې د یوازیني قدرت په توگه دی د منځني ختیځ د تېلو سرچېنې تر خپل کنټرول لاندې راولي. له عمومي جگړې نه د مخه په منځني ختیځ کې انگلستان او فرانس دوه عمده ځواکونه وو. د نولسمې پېړۍ په څېر منځنی ختیځ یو وار بیا مستعمره سیمه شوه، خو له جگړې وروسته زاړه استعماري ملتونه لکه انگلستان او فرانسه ډېر سخت کمزوري شول او متحده ایالات د یوه ستر لاربښود قوت په توگه څرگند شو. د دویمې نړیوالې جگړې په نیمایي کې فرانکلین روزولت د سعودي

عربستان له پادشاه ابن سعود سره وکتل او داسې يې وپتېيله چې په سعودي عربستان کې متحده ايالاتو ته د رول لوبولو زمينه برابره کړي. په دې ډول تاسې د هر هغه څه سبب اندازه لګولی شئ چې متحده ايالاتو په منځني ختيځ کې د تېلو په اړوند ترسره کړل، چې په دی ډول له تېلو ګټه واخلي. نو په اوسنيو داسې خاصو شېبو کې به د متحده ايالاتو د حکومت غړی په دې پينګ وي چې دا د هغوی رښتينې اندېښنه ده او په نورو غوره شېبو کې هغه تبصره کوونکي چې په نورمال ډول د امريکا د سياست ملاتړ کوي، په دې هکله به په ورته ډول اعتراف وکړي. زما په ياد دي چې د خليج له جګړې تر مخه د نيويارک ټايمز د ورځپاڼې کالم ليکونکي توماس فريدمن Tomas Friedman وکښل: «د متحده ايالاتو حکومت د دې لپاره د عربستان دښتو ته سرتېري نه دي استولي چې هلته د دموکراسۍ د اصولو ساتنه وکړی. د سعودي شاهي يو فيودال رژيم دی. ښځو ته ان د دې اجازه نه ورکوي چې موټر وچلوي. سمه ده چې دا د امريکا سياست نه دی چې نړۍ د فيوداليزم لپاره خوندي وساتي. دا د پيسو خبره ده. د امريکا لپاره د حکومت د پلويانو د ساتلو په باب ده او هغو کسانو ته چې د تېلو بيه به وټاکي د غوږ تاوولو مسأله ده. په صنعتي نړۍ کې تېل يوازينۍ او ډېره مهمه توليدي متاع ده او په يقيني توګه د هغه مناسبه بيه ساتل او په پام کې نيول د اقتصادي ودې لپاره ضروري ده. نه يوازې په متحده ايالاتو کې بلکې په لوېديځه اروپا، جاپان او په لويه پيمانه په ټوله نړۍ کې.»

همدارنګه متحده ايالاتو له يوې خوا له اسراييلو سره د ډېرو نژدې اړيکو د لرلو پاليسي تعقيب کړه او له بلې خوا يې د تېلو توليدوونکو هېوادونو له دولتونو سره. له بلې خوا دوی يو په وړاندې لوبوي چې متحده ايالات و

کړای شي د یو حاکم او لاس‌بري قوت په توګه په منځني ختیځ کې رول ولوبوي.

### *آیا کولی شو د سپتمبر له یوولسمې څه زده کړو؟*

موږ باید او اړ یو چې ناوړه پېښې په اړوند چې د سپتمبر په یوولسمه پېښه شوه، فکر وکړو. موږ اړتیا لرو چې د پېښې د قربانیانو او د هغوی د کورنیو لپاره ژور تاثرات ولرو او دغه راز د دې اړتیا هم لرو چې ترې درس زده کړو. موږ اړ یو چې ژور غم، قهر او ترهې ته لږ ورننژدې شو چې څه ترې زده کړو. یو له هغو شیانو چې موږ ورته اړه لرو، چې باید زده یې کړو، د دې پیل دی چې ووینو چې د نړۍ په هره برخه کې کومو خلکو کړاوونه او ستونزې لیدلې دي او وینې یې. دا په څرګند او ښکاره هیجاني غبرګون سره موږ د دوه ګونو برجونو په هغه تصویرونو کې چې په تلویزیون کې څرګند شول، ولیدل.

موږ اړ یو چې د تروریزم تعریف پراخ کړو یا دا چې موږ به یو تروریزم غندو او بل به تاییدوو. موږ اړ یو چې داسې یو حالت ایجاد کړو چې په نړۍ کې دواړه ډولونه یعنې هم د یوې فرقې تروریزم او هم د یوه دولت تروریزم په نړیواله سویه د خلکو له مخالفت سره مخامخ شي. تروریزم یوه نړیواله پدیده ده. امریکایي اتباع د تروریزم یوازیني قربانیان نه دي. تاسې له ژورنالېستانو او سیاست‌پوهانو څخه د ګلوبلیزم او د مارکیټونو د آزاد بهیر په باب خبرې اورئ. خو دوی د خلکو د نړیوال پیوستون په باب څه نه وایي. دوی هېڅکله دا نه وایي چې د نړۍ خلک هر چېرې چې

دي، زموږ ورونه او خويندې دي او موږ بايد د ټولې نړۍ ماشومان د خپلو ماشومانو په څېر په پام کې ولرو.

دا هڅه چې تروريزم خلکو ته په ډاګه کړي او هغوی پرې وپوهوي، د خپل لوري تروريزم نه توجيه کوي. خو که دا هڅه ونه کړي، چې هر شی خلکو ته توضيح شي؛ نو هېڅکله به څه زده نه کړي. موږ بايد ځير شو او وګورو هغه څه چې د دغه وحشتناک عمل په ريښه کې دي، حل او له منځه وړلی شو، ځکه چې په دې برخه کې د غيرعقلاني وژنې ريښې لري.

هوکې! د سپټمبر يوولسمه له تعصب نه د ډکو احساساتو د راپارونې په پاره يوه هڅه وه، خو هغه خلک چې دغه ډول حملې ترسره کوي، ساده ليونيان نه دي او داسې هم نه دي چې ښېخې يې سد په سر کې نه وي او هر څوک وژني. تروريزم دا ډول احساس هم نه دی. يو لړ شيان د دې تعصب يوه برخه ده. په دې لړ کې ويلی شو چې په نړۍ کې ځينې شيان د نورو ميليونونو خلکو د عقايدو په هسته کې دي، هغوی تروريستان هم نه، خو د امريکا په سياست باندې په قهر دي. دغه خلک دومره تعصب نه لري چې ورشي او امريکايان ووژني خو يوازې زموږ په سياست په قهر دي. خو هغه کسان چې د داسې يو عمل وس لري، که موږ داسې نور اعمال ترسره کړو چې د هغوی د قهر سبب شي نو ښايي ووایاست چې د ټولې نړۍ په خلکو کې چې د امريکا له بهرنۍ پاليسۍ نه په تنګ دي، يو بالقوه تروريزم موجود دی، دا کار بايد زموږ د پاملرنې وړ وګرځي.

موږ بايد د خپل سياست په باب فکر وکړو او د دې تپوس وکړو چې څه بايد وکړو چې د منځني ختيځ او د نړۍ د زياتو برخو په باب د متحده ايالاتو تصور ته بدلون ورکړو. د متحده ايالاتو تصور، د يوه سوله

غوښتونکي ملت تصور نه دی. موږ د نړۍ په هره سیمه او برخه کې عسکر لرو. موږ په ټوله نړۍ کې ستر پوځي مرکزونه لرو او موږ د نړۍ په هر سمندر کې ستر سمندري ځواکونه لرو. موږ باید په دې باب اندېښنه وکړو چې څه کولی شو او څه باید وکړو چې د متحده ایالاتو دغه تصور رغنده کړو. د بېلابېلو تصوراتو لپاره د هدفونو لرل، ولسي اړیکې نه دي، نو اجازه راکړئ چې تصور باید بدل کړو، نه واقعیتونه. نه، موږ باید د خپلو سیاستونو واقعیتونه بدل کړو.

دلته هغه څه چې موږ یې کولی شو او باید ترسره یې کړو، دا دي چې له سعودي عربستان نه خپل عسکر وباسو، چې نه یوازې د اسامه بن لادن لپاره په خاص ډول بلکې د منځني ختیځ د خلکو لپاره د خپگان سبب دی. هلته د خلکو، متحده ایالات بدې ایسي ځکه چې مکې او مدینې ته نژدې پوځي حضور لري. په عراق باندې باید تعذیرات له منځه لاړ شي ځکه د خلکو لپاره لوی کړوا دی او له اسراییلو سره په څرگنده او وضاحت چلند وشي. (د متحده ایالاتو حکومت باید قوت استعمال کړي ځکه تر اوسه اسراییل وسله وال کوي، د عربي هېوادونو دولتونه هم وسله وال کوي. لنډه دا چې هر څه چې بدلون راولي او فلسطین ته گواښ وي، وسله وال کوي یې.)

موږ باید په خپلو افکارو کې واقعي بدلون راولو او له دې زیات فکر ونه کړو چې متحده ایالات دې هرومرو یو زبرځواک پاتې شي. سویدن له تروریزم څخه ترهه نه لري. دنمارک، هالند، نیوزیلاند له تروریزم څخه نه وېرېږي. په نړۍ کې زیات هېوادونه شته چې له تروریزم نه اندېښنه نه لري. هغوی بل هېڅ چېرته عسکر نه لري. هغوی بل هېڅ چېرې سمندري ځواک نه لري. نور خلک نه ځوروي او د نورو په چارو کې لاس نه وهي.

هغوی په سترو پوځي یرغلونو، ویجاړونو او لاسوهنو کې لاس نه لري او ریکارد یې نه لري. راځئ چې موږ هم نور هوسا او بې‌اندېښنې ولس واوسو.

که موږ پرېکړه وکړو چې داسې وکړو، نو هر ډول امکانات او سهولتونه به ترلاسه شي. تصور وکړئ، چې ۳۵۰ ملیارده ډالره چې هر کال یې موږ په پوځ لګوو چې زبرځواک شو، کېدای شول چې له خلکو سره مو مرسته کړې وای. له ایدز سره په مبارزه کې مو لګولي وای، له خلکو سره د خوراکي موادو په ورکولو او د خلکو په روغتیایي چارو کې مو لګولې وای او مرسته مو کړې وای. موږ کولی شول چې ستره پانګه ولګوو. هغه د دې لپاره نه چې یو پیاوړی پوځي ځواک اوسو؛ بلکې د خلکو د وړیا روغتیا ساتنې، د کورونو جوړولو او د نړۍ په نورو سیمو کې له خلکو سره مرسته شوې وای. د نړۍ د روغتیایي سازمان وروستی رپوټ څرګندوي، چې د څېړنې له مخې ټول ۱۰۱ بلیونه ډالره په کال کې په اساسي درملو او درملنې لګېږي او د نړۍ په بېوزلو هېوادونو کې د ۸ میلیونو خلکو ژوند ژغورلی شي. د دغو پیسو لګښت د روغتیا په برخه کې زموږ په نور زیات امن کې مرسته کوي. بم غورځونه موږ خوندي نه شي ساتلی.

***د سپټمبر له یوولسمې نه وروسته پنټاګون د زیاتو پوځي لګښتونو د ترلاسه کولو او اخیستلو غوښتنه کوله او بوش ته داسې مصوبه وړاندې شوه چې په کارپوریشنونو او بډایو باندې ټکس کم کړی شي. دا به په ټولنیزو لګښتونو څه اغېزه وکړي؟***

ډېره په زړه پورې خبره دا ده چې هر څومره انتقادونه دموکرات ګوند په

اداره وکړل، ډېر کوچنی بدلون يې د ادارې د ټکس په قانون کې راوست. دا هر څه کوچني وو، دا واقعاً د خلکو د اړتياوو د پاملرنې لپاره څرګند دموکراتيک پروګرام نه و. که چېرې پخوا کوم کوچنی پروګرام موجود و هغه هم اوس لادرکه شو. حکومت ادعا کوي چې د بشري حقونو او بشري اړتياوو په باب اندېښنه نه په دننه کې او نه په بهر کې ده. البته په تاريخي لحاظ چې څه پېښېږي دا دي چې زما په ياد دي چې د ويتنام د جګړې په مهال ډرامه ليکونکی ارتور ميلرد جانسن سپينې ماڼۍ ته وبلل شو، نوموړي له ورتګه ډډه وکړه او پر ځای يې دا پيغام ورولېږه چې ويلي يې و: «**کله چې ټوپک غړمبيږي، هنرونه مري.**» نه يوازې هنرونه مري بلکې انسانان مري، نه يوازې بهرني خلک مري، بلکې د هېواد خلک هم مري.

د نويو صنعتی هېوادونو په نسبت په متحده ايالاتو کې د نويو زېږېدونکو ماشومانو مړينه ډېره ده او اوس داسې برېښي چې دا حالت مخ په زياتېدو دی.

له دې جګړې څخه د مخه موجود او معمول حالت پانګه په لوړه پوړۍ کې متمرکزه وه، د دې هېواد د لس ګونو ميليونو وګړو اړتياوې نه وې پوره شوې چې د جنګ په نتيجه کې به نور هم شدت ومومي. ان له مخه د اکونومست مجلې د ادوارد وولف په قول وليکل، چې يو په سلو کې لوړه پانګواله پوړۍ، په سلو کې د ۳۸ کورنيو پانګه کنټرولوي. «که چېرې موږ په پوره دقت مالي پانګه وڅارو»، الف وروستي ارقام چې ترلاسه شوي، هغه د ۱۹۹۸ کال دی، چې نوموړی ورته ګوته نيسي. «په سلو کې يو بډايه کورنۍ د ټولو په سلو کې ۴۷ پانګه په لاس کې لرې»، چې د تېرو اويا کلونو ډېر لوړ رقم دی. د ټکس (ماليې) له کمښت سره د اقتصادي

پرمختگ کمښت او د پوځي لګښتونو زیاتوالی به دغه نابرابرۍ نوره هم زیاته کړي.

د ماساچوست والی جان سویفت اعلان وکړ چې ۲۰ میلیونه ډالره دې د کورونو د جوړولو او دېرش میلیونه دې د غاښونو د اساسي درملنې له پروګرام څخه قطع شي، چې د ایالت د ۵۰۰۰۰۰ بېوزلو بالغو او سپین ږیرو لپاره تخصیص وو.

په تېرو نږدې وختو کې دویمه نړیواله جګړه څو وارې پېښه شوه. په خاص ډول له پیرل هاربور سره ورته وه. که پرتلنه وشي سم د واره دا په تاریخ باندې یو تېری دی. پرته له دې چې غور وکړي خلک په خپله خوا کې دروي. تاسې وایاست چې د سپټمبر یوولسمه لکه پیرل هاربور جګړې ته ورګډېدل وو. اوس موږ اړ یو چې جنګ و کړو. ښه آیا دا سمه ده چې دا د پیرل هاربور په څېر وه؟

آیا دلته کوم مشخص ملت و، چې پر موږ یې تېری کړی وي؟ او که څوابیه حمله وشي؟ ښه په دې اساس پر موږ حملې بندېږي؟ آیا دلته کوم ملت و چې غوښتل یې خپل قدرت وغځوي، لکه هټلر چې په اروپا کی خپل قدرت وغځاوه، اوس دا ډول حالت نه دی، دا یو ډول خاص حالت دی او په دې اړوند باید مشخصې خبرې وشي.

***په افغانستان کې جګړه دا لومړی ځل نه دی چې متحده ایالات د ترهګرۍ په وړاندې پوځي ځواب وایي. د تېرو پېښو په اساس د دې نتیجه څه ده؟***

کله چې په کینیا او تانزانیا کې د متحده ایالاتو سفارتونو کې چاودنې وشوې، سملاسي کلنتون، لیبرال جمهور رئیس الوتکې واستولې چې په سودان او افغانستان بمباري وکړي. ځکه چې اړ و، چې په ځینو ځایونو کې بمبارد وکړي. کلنتون وویل چې هغوی په سودان کې چې د زهرجن ګاز د تولید آسانتیاوې پکې وې، بمبارد کړي. خو دا ثابته شوه چې ناسم او چورلټ دروغ و. څرګنده شوه چې دغه کارخانې د سودان نیمایي نفوسو ته درمل تولیدول. موږ نه پوهېږو چې د دغه بمباریو په اثر څومره کسان مړه شول. د کلنتون یو مشاور سنلي بیګر په هغه مهال کله چې په سودان باندې یرغل کېده، په تلویزیون کې راڅرګند شو او ویې ویل، چې دغې کارخانې کیمیاوي وسله جوړوله. خو کله چې په دې وروستیو وختو کې له بیګر سره مرکه وشوه. د PBS په تلویزیون کې د لومړۍ لیکې په نوم پروګرام کې چې یو له هغه پروګرامونو څخه دی، چې د یوې موضوع په اړوند بېلابېلې لیدتوګې او نظریې وړاندې کوي. لومړۍ لیکه پروګرام FRANT LINE یادونه کوي چې د هغه وخت اداري وویل، چې دوی د کیمیاوي وسلو په کارخانو بمباري وکړه؛ خو په واقعیت کې هغه د درمل جوړولو یوه کارخانه وه. بیګر وویل: «زه فکر کوم ښایي دغلته ځینې کسان وو چې ویل یې په دغه کیمپ کې کیمیاوي وسلې جوړېدې.»

FRANT LINE وروسته د یوه رسمي مامور د خبرو یوه صحنه له مطبوعاتي کنفرانس څخه وښوده، وایي دا واقعیت دی. دا سنلي بیګر و.

څرګنده ده چې پر سوډان او افغانستان باندې بمباریو د سپتمبر د یوولسمې ترهګریز عمل په مخنیوي کې کوم اثر نه درلود، بلکې کېدای شي چې دا عمل یې راپارولی اوسي.

***تاسې په یوه لیکنه کې د «عادلانه او غیرعادلانه جګړې» یادونه وکړه چې په دې برخه کې داسې څه نشته چې عادلانه جګړه یې وبولو. څرنګه دې نتیجې ته ورسېدئ؟ په دې اړوند مو فکر نه دی کړی؟***

نه، زه د دویمې نړیوالې جګړې له نتایجو څخه د خپلو تجاربو په ترڅ کې دې نتیجې ته ورسېدم. نه یوازې زما د تجاربو په نیمایي کې بلکې په راوروسته کې او په راتلونکي کې به فکر وکړو، چې خبره څه وه؟ په اصطلاح کې د عادلانه جګړې تیوري دا نژدې کوي، چې کولی شي عادلانه جګړې ته راشي. فاشیزم غوښتل چې نړۍ ایل کړي. دا ډېره وحشتناکه وه. له ترهې ډکه وه. دغې جګړې د عادلانه جګړې ټول فکټورونه درلودل او په ډېر اشتیاق سره له ښې نه تر کینه پورې د خلکو ملاتړ ورسره و. البته په کینې کې نه هر یو او نه یوازې د کارګرو سوسیالست ګوند ځینې چې غړیتوب یې درلود، له جنګ سره په مخالفت کې بندیان شول. خو په یقیني توګه کینې لاسي، کمونست ګوند، کینې لیبرال کینو د جګړې ملاتړ وکړ.

په هر حال، که زه داسې احساس وکړم چې دا جګړه عادلانه نه وه؛ نو دا د جګړې پر ضد ډېر جدي حالت و. زه دې نتیجې ته رسېږم چې موږ په بشري تاریخ کې داسې نقطې ته ورسېدو چې د عادلانه جګړو دوام او آسانتیاوې له منځه ولاړې، ځکه اوس په زړه پورې او فوق العاده نوې جنګي تکنالوجي د زیات شمېر خلکو د وژنې لپاره استعمالېږي. په هغو وسایلو چې برې ترلاسه کېږي او پای ته رسېږي، کولای شي چې ورسره راڅرګند شي خو په هر حال مهمه دا ده چې په هغه شېبه کې ورته ځیر

شي. د ظلم له منځه وړل د قهر مخنیوی او هغه څه چې پای ته یې رسوي کولای مو شول، چې د ترهې او وحشت پر ضد ودرېږي.

وروسته کولی شئ دا په پام کې ونیسئ، چې په جګړه کې د پستۍ او شرارت وسایل یقیني دي، مهمه دا ده چې په پای کې څه لاس ته راوړل کېږي، همېشه غیر یقیني ده. دغه جګړه همېشه د ځنځیري پېښو په وسیله چې اټکل یې نه کېده، ترتیب شوې وه. د بېلګې په توګه، په دویمه نړیواله جګړه کې تاسې باور نه کاوه چې فاشیزم به له پښو وغورځوئ. البته داسې فکر به مو کاوه چې کولای شي هټلر او موسولیني ته ماتې ورکړئ، خو دا باور مو نه راته چې فاشیزم، میلیتاریزم، راسیزم، امپریالیزم او د تېري او تجاوز ټول دار و ندار او عناصر به له منځه لاړ شي. په حقیقت کې د پنځوسو میلیونو مړو نه پس دا پېښې نه شول. د داسې مسایلو په پام کې نیولو سره او د بشري نژاد او د جګړې ډېره وحشتناکې تکنالوجۍ د ترلاسه کولو پر هغو باندې فکر کولو، زه دې ته وهڅولم چې وروسته به نوره داسې جګړه نه وي چې موږ یې عادلانه وبولو. ما پرېکړه وکړه چې له کومو ستونزو سره چې موږ مخامخ یو له کومو ظلمونو سره چې موږ مخامخ یو، او د نړۍ له کومو حالاتو سره چې موږ مخامخ یو، د کوم ډول قهرجنو اعمالو سره چې موږ مخامخ یو، اړ وو چې د حل لاره ورته پیدا کړو، نه دا چې بشریت قتل عام کړو.

په ډاډ سره تاسې له ستونزو سره پرېږدو، خبره هر وخت د دویمې نړیوالې جګړې په اړوند ده. (څه به یې کړی وای؟) د دې پوښتنې ځواب اسان نه دی، خو دا به باید په دې پیل شي چې وایي: «زه د حل داسې لاره چې د خلکو عامه وژنه پکې وي نه منم. هڅه به وکړم بله لاره غوره کړم.» البته بله لاره یې پاسیفیزم یا عطالت نه دی، بله لاره یې قبلول یا منل نه دي. بله

لاره له جګړې پرته مقاومت دی. بله لاره له ځمکې لاندې غورځنګ او پټه مبارزه ده. عمومي کاربندي او نه عمل کول دي. که په دویمه نړیواله عمومي جګړه کې د هټلر پر ضد په دنمارک، جرمني، ناروې کې مقاومت شوې وای په ځانګړې توګه یې چې یهودی مېړونه دیپورت (استول) کول، اعتراض شوی وای، د مقاومت دغه میتود د سوله ییزې حل لارې نتیجه ډاډمنه ده، ځکه چې فشار اچونکې قوه هر وخت پیاوړې وي؛ خو دوی داسې عمل کوي چې نور زیات وسایل لري، چې پای ته رسېږي. په ځانګړي ډول څرنګه چې دوی عمل کوي، یا داسې ښکېل وي، نه د حکومت له لارې بلکې د خلکو له لارې چې ډېر او د پام وړ اهمیت لري. په خلکو کې له عام محبوبیت سره مقاومت د زیات ډاډ سبب کېږي. که دولت مسوول وي، تاسې زیات بری ترلاسه کولی شئ.

د بېلګې په توګه که له میلاسوویچ څخه د کوسوو د خلکو د خلاصون په خاطر د جنګ کولو اخلاقي عناصر مشخص کړو، خو ایا متحده ایالاتو او ناتو د جنګ په دغه پړاو کې څه وکړل؟ دوی نوره ترهه ایجاد کړه. نور زیات کډوال، د مخکې په نسبت نور زیات مړي، پر یوګوسلاویا یې بمباري وکړه او ملکي خلک یې ووژل، ځکه چې جنګ د چا مخ او څټ نه ګوري. مظلوم وګړي پکې وژل کېږي. په حقیقت کې سیاستپوهان په دې اعتراف کوي او وایي: «ښه مظلوم وګړي به ووژل شي. خو ډېره کرغېړنه پېښه ده.» خو دا هغه څه دي چې ترهګر یې وایي او دا هغه څه دی چې Timothy Mcveigh یې وایي؟

کله چې له Timothy Moveigh څخه د ماشومانو په باب پوښتنه وشوه چې د اوکلاهاما په ښار کې د بمب چاودنې په اثر ووژل شول، نوموړي وویل: «دا د دواړو خواوو اتفاقي زیان دی.»

نوموړي هماغه خوله کاروله چې د متحده ایالاتو حکومت د خلیج د جګړې پر مهال هماغسې خبرې کولې. خو دا موازي خرابی یا د دواړو خواوو له خوا ویجاړتیا د بشریت وژنه ده. هغه خلک چې په نیویارک کې د ترهګرو په وسیله مري او هغه خلک چې په افغانستان کی د بمباریو په اثر مري، دواړه زموږ د حکومت له خوا اتفاقي زیان دی چې رسیږي.

د «عادلانه جګړې» ګړنه په خپل ماهیت کې تناقض لري. جګړه په ماهیت کې غیرعادلانه پدیده ده او زموږ د دوران ستر مخالفت دا دی، چې څنګه کولی شو له شیطان او له ظلم او استبداد سره د زیات شمېر خلکو له وژلو پرته معامله وکړو.

## *کولی شې، ځان د یو پاسیفیست (سوله غوښتونکي) په توګه وښایاست؟*

ما هېڅکله د ځان پېژندنې لپاره د پاسیفیست کلمه نه ده کارولې، ځکه چې دا وړاندیزونه ځینې شیان مطلق کوي او زه په مطلقیت باندې باور نه لرم. فکر کوم ښایې داسې حالت به وي چې په یو شیطاني قوت باندې یو وړوکی تېری عادلانه وبولې. ان ټول مشهور پاسیفیستان لکه ګاندي، مارتین لوترکینګ هم په دې باور و. د پاسیفیزم پوښتنه په زړه پورې ده. ملي ولسي رادیو سکات سیمون په یوه تبصره کې چې په وال ستریت ژورنال کې د اکتوبر په ۱۱ نېټه لیکل شوې وه، کښل شوي وو چې ان پاسیفیستان هم باید د دې جګړې ملاتړ وکړي.

سایمون چې یو (Quaker) د عیسوی دین د سوله ییز غوځنګ غړی دی، ولیکل: «امریکایي پاسیفیستان اوس بله معقوله لاره نه لري پرته له دې چې

د جګړې ملاتړ وکړي.» نوموړی هڅه کوي چې پاسیفیزم د ځان د دفاع لپاره د منلو وړ وګرځوي، چې په ثابته توګه د یرغل کوونکو د مقاومت څارنه کوئ او دا جګړه توجیهه کړئ. خو د ځاني دفاع ګڼه دا نه توجیه کوي چې ته دې په ګڼ مېشتو سیمو باندې درانه بمونه وغورځوي او خلک دې ووژني. دا عملي نه ده او احتمال نه لري چې په نړۍ کې د تېري او تجاوز مخه ونیسي.

## ***کله چې خلک د سیده ظلم زیاتي او محرومولو په وړاندې مقاومت کوي لکه پوځي اشغال، نو دغه ترهګري څه ډول ارزیابي کوي؟***

زه فکر نه کوم چې ترهګري یا تروریزم توجیه شي، ان تر دې که پای یې عادلانه وي. د فلسطینیانو غوښتنې عادلانه دي. خو زه فکر نه کوم چې تروریستي اعمال دې توجیه شي. په دواړو حالاتو کې یعنې له اخلاقي او پراګماتیکو شرایطو سره د توجیه وړ نه دي. لومړی زه فکر نه کوم چې په ګڼو بازارونو او دیسکوتیکونو کې دې بمي چاودنې توجیه شي چې بېوزلي او بېګناه خلک ووژني، ان که سبب یې عادلانه وي. دویم دا چې له عملي پلوه، ترهګري خامخا خپل ځان ته وایي، یا دا چې خلک په مفهوم پوهوي، چې د تروریزم پر ضد راپاڅي. موږ دا واقعیت په اسراییلو او فلسطین کې ولیدل. موږ ولیدل چې له موټري بمونو سره د اسراییلو د پیاوړي پوځ له خوا مبارزه کېږي خو زیات کلونه وشول چې دا جګړه روانه ده.

له اقبال احمد سره مې خبرې په یاد دي، نوموړی چې د درېیمې نړۍ او د ګریلایي غورځنګ د جګړې ډېر ځیرک شاهد دی او له ډېرو هوښیارو

کسانو څخه دی، په ډېر قوت سره يې د ترورېزم پر ضد د جګړې خبرې کولې. له هغه سره په مرکه شوي اثر کې ډېرې عالي او په زړه پورې خبرې اترې دي. نوموړی د ترورېزم پر ضد له داوید بارسامين سره په خبرو کې وايي: «تاسې ټولنيزې ستونزې د فردي تېري له لارې حل نه کړې. ټولنيزې ستونزې ټولنيز او سياسي تحرک او انګيزې ته اړه لري.»

# دويم څپرکی

## د ګډو هدفونو پلټنه

***په افغانستان کی د جګړې د توجیه لپاره ویل کېږي چې نړۍ یې خوندي کړه، خو داسې جوتېږي، چې ښایې جګړه به یې ډېره خطرناکه کړي.***

بوش اړ دی چې په دې ټکي ټینګار وکړي چې دې جګړې نړۍ له خطره بچ کړه. له دې پرته د هغه ډار لپاره چې موږ په افغانستان کې ایجاد کړ، بل هېڅ ډول قانع کوونکی دلیل نشته. دغه وېره او ترهه هم د حکومت او هم د مطبوعاتو له خوا ډېره کوچنۍ او بې ارزښته وښودل شوه؛ خو زه فکر کوم چې په دې باب ډېر لږ شک موجود دی او هغه دا چې موږ نړۍ مصؤنه نه کړه او له خطره مو ونه ژغورله.

د ۲۰۰۱ کال د ډسمبر په شلمه نېټه نیویارک ټایمز خبر ورکړ چې له دغو ټولو خرابیو وروسته د طالبانو لوړ پوړي مشران له امریکایي بمونو څخه سلامت ووتل او په ډېره هوښیارتیا او مهارت سره د امریکا له ملاتړو افغان ځواکونو له منګولو ووتل او وتښتېدل.

دوی وایي: «موږ غواړو ترهګري له منځه یوسو.» خو هېڅ نښه نښانه یې نشته. د بوش اداره پخپله اعتراف کوي چې د القاعدې ځاله په ډېرو هېوادونو کې ده او بیا وایي دوی بن لادن تعقیبوي او د هغه څارنه کوي.

خو تر اوسه يې بن لادن پيدا نه کړ. بيا ادعا کوي چې د طالبانو مشران غواړي، خو تر اوسه دوی د طالبانو مشران ونه نيول. خو لکه څنګه چې دوی پخپله وايي د طالبانو د مشرانو القاعدې او يا بن لادن په نيولو کې دوی پاتې راغله.

زه فکر کوم چې موږ هم بايد ووايو چې دغه هدفونه له شک نه ډک بربښي. ځکه چې ان دې هدفونو ته د دوی په رسېدلو سره ښايي د ترهګرۍ نتايج پای ته نه وي رسېدلي. په هر صورت د اد دوی خپل نظر دی. دوی په خپلو اهدافو کې پاتې راغلي دي. د يو داسې شخص د ليد او نظر له مخې چې د زور د سياست په نسبت له بشري اړتياوو څخه اغېزمن دي، هغه څه چې په افغانستان کی پېښ شول يوه بې رحمي ده.

وروسته بايد د متحده ايالاتو هغه سملاسي خطر ته ګوته ونيسو چې کله په افغانستان کې هدفونه په پای ته رسېدو شول، نو د عراق په اړوند په پوځي عملياتو باندې غور کوي. د بوش د ادارې خلک د نورو هېوادونو لکه سوماليا او سوريې په باب هم د جنګ د کمپاين خبرې کوي. زه په ډاګه وايم چې دوی د ترکيې او سعودي عرب په باب هېڅ يادونه نه کوي. په دې برخه کې يو څرګند وېش موجود دی، چې څوک بمبارد کړو او څوک بمبارد نه کړو. دغه وېش له هغه هېوادونو سره چې ښايي هاربورينګ Harboring ترهګرو پټنځای وي، هېڅ نه کوي. دا وېش يوازې د هغو هېوادونو پر ضد عملي کوي، چې تر اوسه زموږ په کنترول کې نه دي. هغه هېوادونه چې موږ يې کنترولوو لکه ترکيه او سعودي عربستان چې هر څومره ترهګرو ته ځای ورکوي، ورکولای يې شي، موږ به يې په بل ځای کې وګورو.

د جګړې د لمنې د پراختیا د ستراتیژي او د تروریزم پر ضد جګړې بریالیتوب ګڼي، دا دی چې حکومت ته د فشارونو پرله پسې موقع او وخت ورکوي او د کارپوریشنونو لپاره دوامداره ګټه رسوي. دا د دې سبب کیږي چې نړۍ نوره هم بې ثباته او خطرناکه شي. که متحده ایالات، د افغانستان جګړه په عراق کې نوره هم پراخه کړي، دا به د امریکا او عربي هېوادونو او اسلامي نړۍ په اړیکو باندې له ناورینه ډکه اغېزه وښندي، ځکه چې وروسته به بیا پوه شي چې متحده ایالاتو په افغانستان کې د تېري او تجاوز حدود ونه ساتل (محدودیې نه کړل). که په نورو هېوادونو یرغل وکړو، نو د بوش دا ټولې منکرېدنې چې ګویا موږ د اسلام پر ضد هېڅ عمل نه دی کړی، دا به په ډاګه شي. که په نورو هېوادو یرغل وکړو چې کوو یې، لکه څنګه چې په افغانستان کې موږ د هغه بوږنوونکې بشري نتایج ولیدل.

زه فکر کوم چې د امریکا خلک لا تر اوسه د بوش د څرګندونو دا زغم نه لري چې وایي دا هغه جګړه ده چې پر مخ به ځي او دوام به لري. خلک د دې اړتیا لري چې وپوښتي: «آیا موږ غواړو چې زموږ ماشومان او لمسیان دې په داسې هېواد کې چې پرله پسې جګړه په کې روانه وي، واوسېږي؟» دا نور او نوره نړۍ له موږ سره نه دوښمنه کوي؟ او په نړۍ کې د متحده ایالاتو مسئولیت د نورو او نورو بشري تلفاتو په اړوند نه زیاتوي؟

### *د جګړې ضد غورځنګ د دې جګړې پر مهال ډېر کمزوری شوی و، د جګړې پر ضد د هغو آوازونو شمېر ډېر لږ و.*

یوه ستونزه دا ده چې موږ یو ملي جګړه ضد غورځنګ لکه څنګه چې

موږ د ویتنام د جګړې پر مهال درلود او یا تر یوه حده مو د خلیج د جګړې پر مهال درلود، نه لرو. خو هغه څه چې موږ یې لرو، هغه غیرمتمرکز د جګړې ضد غورځنګ دی. حقیقت دا دی چې دا غورځنګ غیرمتمرکز او د یو ملي فوکس لاندې نه دی یعنې په سلګونو او سلګونو جګړه ضد اعمال چې په ټول هېواد کې تر سره شوي، ډېره لږه پاملرنه ورته شوې ده.

زه نه پوهېږم چې ټول څومره اقدامات ترسره شوي دي. یوازې دومره کولی شم د دې حقایقو داسې اندازه واخلم چې په هېواد کې چې زه هر چېرې ځم او زیات سفرونه مې د سپټمبر له یوولسمې او په افغانستان باندې له بمبارد وروسته وکړل، په ټولیز ډول، زیات خلک د جګړې ضد دي.

ماته یوازې له Montana او Missoula څخه د جګړې ضد د مارش برېښنالیک راورسېد. نژدی سلو کسو د Missoula د ښار مرکز ته مارش کړی و او د پوځي یرغل پر ځای یې د سوله ییز بدیل غوښتنه کوله. اسوشیتد پریس رپوټ ورکړ چې زه تصور کوم چې دلته د جګړې ضد مارش په Missoula کې دی، نو باید دلته د هر ایالت په ښار او مرکز کې د جګړې ضد خواخوږي او احساس راپورته شي.

مطبوعاتو د جګړې پر ضد د احساساتو د رپوټ ورکولو په باب ډېره مشکله دنده ترسره کړې ده. دې کار د کینلاسو لپاره ډېر ستر مسئوولیت ایجاد کړ. دوی په دې اړه مالومات ورکول چې په ټول هېواد کې خلک څه کوي او څه وایي. ما یو بل برېښنالیک تر لاسه کړ چې د Rockfeller په مرکز کې د جګړې ضد په اړه و. پوهېږئ چې د راک فیلر مرکز له

کرسمس نه د مخه څنګه و؟ دا د رخصتیو ډېر وحشي او بې رونقه روح او دیکور شوی ځای و. خو نن بیرغونه دي. خلک پاڼې وېشي او د جنګ پر ضد خبرې کوي. څرګنده ده چې کتونکي ورته په ډېره مهربانۍ ګوري. اعتراض کوونکي د هغو خلکو له خوا چې د هغوی له څنګه تېرېږي له هغو شاباس او د ملاتړ مفاهیم او کلمات اوري.

### ***د داسې کسانو لکه ریچارد فالک Richard Falk په څېر خلکو غوښتنه او عکس‌العمل څه دی، چې د متحده ایالاتو له زیاتو پوځي لاسوهنو سره مخالف دي او د افغانستان جګړه عادلانه جګړه بولي؟***

زه ډاډه یم چې ریچارد فالک د جګړې په باب تک درلود او زه له دې کبله وایم چې هغه څو وارې د جګړې په باب وروسته او وړاندې کېده. هغه له یو شمېر کیڼ لاسو خلکو سره ورک و، چې په باوري توګه دا د ملت Nation د مجلې د ایډیټورانو خبرې وې.

زیات شمېر خلک د جګړې ضد دي. ما ته یوازې له Montana او Missoula څخه د جګړې ضد د مارش بریښنالیک راورسېد. «نژدې سلو کسو د Missoula د ښار مرکز ته مارش کړی و او د پوځي یرغل پر ځای یې د سوله ییز بدیل غوښتنه کوله. اسوشیتد پریس رپوټ ورکړ چې (۱۸) زه تصور کوم چې دلته د جګړې ضد مارش په Missoula کې دی، نو باید دلته د هر ایالت په ښار او مرکز کې د جګړې ضد خواخوږي او احساس راپورته شي. مطبوعاتو د جګړې پر ضد د احساساتو د رپوټ ورکولو په باب ډېره مشکله دنده تر سره کړیده. دې کار د کیڼ لاسو لپاره ډېر ستر مسئوولیت ایجاد کړ. دوی په دې اړه مالومات ورکول چې په ټول

هېواد کې خلک څه کوي او څه وايي. ما یو بل برښنا لیک تر لاسه کړ چې د Rockfeller په مرکز کې د جګړې ضد په اړه و. پوهېږيء چې د راک فیلر مرکز له کرسمس نه د مخه څنګه و؟ دا د رخصتیو ډېر وحشي او بې رونقه روح او دیکورشوی ځای و. خو نن بیرغونه دي. خلک پاڼې ویشي او د جنګ پر ضد خبرې کوي.

ښرګنده ده چې کتونکې ورته په ډېره مهربانۍ ګوري. اعتراض کوونکي د هغو خلکو له خوا چې د هغوی له څنګه تیرېږي له هغو شاباس او د ملاتړ مفاهیم او کلمات اوري.

### ***د داسې کسانو لکه ریچارد فالک Richard falk په څیر خلکو غوښتنه او عکس‌العمل څه دی، چې د متحده ایالاتو له زیاتو پوځي لاس وهنو سره مخالف دی او د افغانستان جګړه عادلانه جګړه بولي؟***

زه ډاډه یم چې ریچارد فالک د جګړې په باب شک درلود او زه له دې کبله وایم چې هغه څو وارې د جګړې په باب وروسته او وړاندې کېده هغه له یو شمېر کېن‌لاسو خلکو سره ورګډ و چې په باوری توګه دا د ملت Nation د مجلې د ایدیتورانو خبرې وې، کوم چې د جګړې په باب یې د هغه مقاله خپره کړې وه. زه فکر کوم چې هغه خلک چې د محدودو پوځي عملیاتو په اړوند خبرې کوي، یا هېڅ نه پوهېږي او یا ترې هېر دي چې پوځي عملیات او اقدام محدودي، مرمی نه لري. د پوځي اقداماتو تمایل په طبیعي توګه دا دی چې پرمخ ځي او څومره چې کولی شي هومره کار کوي. تر هغې پورې چې له خپلو تهولو زېرمو څخه کار واخلي. د وسلو زیرمې لکه څنګه چې موږ له دویمې نړیوالې جګړې راپه دې خوا ولیدل

چې پوځي عمليات دومره پراخ شول چې يوازې د هستوي وسلې کمی و، چې هغه هم حکومت په پام کې لرله او په دويمه نړيواله جګړه کې موږ هستوي وسله وکاروله.

همدارنګه زه فکر کوم چې ترهه او وېره اچول يو فکتور و. تاسې فکر نه کوئ کله چې په کېن لاسو ترهه اچول کېده په موږ ټولو يې اغېزه وکړه. کله چې د تلويزيون په رپوټونو کې ښکېل شي، دغه رپوټونه د جګړې ملاتړ کوي. جګړه او د جنډې (بيرغ) خوځېدنه يوشان اغېزه لري. زه هم دا ډول فکر کوم چې ځينې کېن لاسي خلک په ځينو ارقامو باندې چې په سلو کې ۹۰ خلکو د جګړې ملاتړ کړی، وېرول شوي دي. هغه څه چې کېن لاسی زياتره د خپلې کمزورۍ په وخت کې کوي، هغه دا ده چې دوی هڅه کوي د اکثريت خلکو پاملرنه ځان ته راواړوي. دلته د پوهېدنې وړ بنياد دی. موږ به ځان يو سکتاريست ونه ګڼو او نه به ځان تجريد او ګوښه کړو. دلته دا مشروع اصول دی او زه فکر کوم چې دا سمه ده چې ووايو اجازه راکړئ چې اکثريت نفوس چېرې دی ان تر دې که فکر وکړو چې دا ناسم اکثريت دی. هيله ده وګورئ اکثريت چېرې دي او اجازه راکړئ په کومه لاره موږ له خلکو سره سم ګډ تفاهم پيدا کولی شو. خو زه فکر کوم چې دا ګډ نظر بايد په مجموع کې په ځينو شيانو باندې چې موږ باور لرو، د منلو وړ نه بلکې وران او غلط دی. دلته څو لارې دي چې ګډې عقيدې ته رسېږي او هغه په سلو کې ۹۰ دي چې په افغانستان باندې د بمباري په ملاتړ کې ښکېل نه وو.

موږ کولی شو کلی تفاهم او نظر ته ورسېږو. پر هغه څه چې زه باور لرم هغه د دغه دردوونکي حالت په وړاندې همدردي ده. موږ کولی شو چې د امريکا ولس ته د بشري تاثراتو په باب چې زموږ د بمباريو پر اثر ايجاد

شوی، داسې مالومات ورکړو چې هغوی ته نه رسېږي. موږ کولی شو چې هغه څه چې د نیویارک ټایمز په وروستیو مخونو کې دي، لومړیو مخونو ته راولو. ډېره خاصه او ډاروونکې محاسبه دا ده. د راپورترانو له خولې د یوه کلي په یوه برخه کې، په یوه روغتون کې د ماشومانو، هغه ماشومانو چې څنګلې او ورنونه یې له لاسه ورکړي، سترګې یې له لاسه ورکړې او هغه خلک چې واقعاً په جدي توګه ټپیان شوي دي، هغه کلیوال چې دېرش کسه او څلوېښت کسه یوځای پرې خاوری راړول شوې دي، نو که موږ د امریکا خلکو ته د بشري وسایلو داسې ډول جدول شوې احصایې او شمېرنې خپرې کړو، دوی به مرسته ونه کړي، بلکې پرمخ به ولاړ شي او مقابله به ورسره وکړي. وروسته به له هغه څه سره چې خلکو ته لکه په نیویارک کې چې پېښې شول او د خلکو په وړاندې پېښې او تېر شول خلک به ورسره مقابله وکړي. په افغانستان کې د تلفاتو ستونزه دا ده چې له دغه ځایه یې د بشري کړاوونو چې پر دوه ګونو برجونو باندې د برید په اثر رامنځته شول، هېڅ ډول ارقام او تصویر نه دی وړاندې شوی. خلک ځکه مري او وژل کېږي چې د افغانستان په کلیو او خواوشا کې چې «پوځي هدفونه دي» ژوند کوي. دا پخپله یو ډول تروریزم دی، خو د دې کره انځور موږ ته نه دی راښودل شوی.

په افغانستان کې د بمباریو قربانیان داسې انساني انځورونه نه دي چې په نیویارک ټایمز کې د سپټمبر د یوولسمې نېټې د تصویرونو په څېر وي. کله چې دغه تراژیدي په ارقامو او احصایو کې انځور شوه، ټایمز دا څو میاشتې پرله پسې هغه څه کوله چې هر وخت یې ترسره کوي، د هغو انسانانو عکسونه په میناتور توګه چاپ کړل چې د سپټمبر د یوولسمې نېټې په یرغل کې مړه شول. د هغوی نومونه او عکسونه، هغوی له څه نه

خوند اخیسته، مینه والو یې هغوی څنګه په یاد ساتلي. د نیویارک د تاریخي ټولنې ډایرکټر Kenneth Jackson ټایمز د دې یادنامې د مخ په باب ولیکل:

**«دې واقعیتونو چې دوی ته یې د انساني څېرو تصویر ورکړی، د حقیقت په توګه ډېر عالي نښیي. دا هر انځور په ځانګړي توګه د مینې، دوستۍ له ماشومانو سره د خدای پامانۍ، د یوه اتل بدرګه، د خیالي کورونو رانیول او داسې نښیي چې دا هره یوه څېره چې د ژوند حق یې درلود چې باید ژوندی خوشحاله او بریالی وای، له منځه لاړل.»**

کله چې ما دغه پاڼه یا سکیچ ولوسته، ډېره ژوره اغېزه یې راباندې وکړه. لکه د Bensonhurst یو شعر چې «یو څوک چې پری تکیه وشي، یوه ملګری، یوه خور، خندا، وړل او بایلل». که چېری د دې پر ځای چې هغو خلکو چې د دوه ګونو برجونو او پنتاګون په نړۍ کې د امریکایي حاکمیت د سمبول په توګه ولمانځل، کاشکې چې هغو خلکو چې ځانونه یې له لاسه ورکړل، د هغو څېرې یې مجسمې کړې وای. که څه هم چې دغو ټولو خلکو، له تروریزم سره په جګړه کې له بوش څخه ملاتړ اعلان کړ، هغه واقعي بشریت چې د بمونو لاندې ووژل شول، هم لیدل کېدای شو او دا د میدیا په تصوراتو کې یوازې القاعده او اسامه بن لادن نه دی؟ بلکې له هغو زیاتو بشري تراژیدیونه چې اوس په افغانستان کې تېرېږي څه یې ترې زده کړي وای. د مړو نومونه، تصور کړئ پر هغه کلیو چې مور پرې بمونه واچول، د هغه پلار خبرې چې خپل ماشومان یې له لاسه ورکړل، د ماشومانو عمر. زه فکر کوم چې کاش دویم ځلې فکر یې کړی وای. بې له شکه چې په واشنګټن او ټول هېواد کې تعصب یعنې هغه

ځوک چې ورسره علاقه لري لکه په ټوله نړۍ کې د هغوی هېوادوال، چې د ځینو سببونو لپاره د هغو وژل، زیاتره امریکایان به په دې پوه شي چې هغه جګړه چې موږ یې وېرولي یو، د عادي خلکو، ښځو او ماشومانو په وړاندې جګړه ده. په خاص ډول که د افغانستان د خلکو داستان ورته ویل شوی وای.

دغه راز زه فکر نه کوم چې دلته یو ګډ تفاهم شته، که موږ دا څرګنده کړو چې زموږ هدف یوشان دی او باید د ترهګرۍ یوه چاره وکړو، موږ اړ یو چې په څرګند ډول یو امتیاز د هدف په توګه وټاکو. کله چې د ټولیزو وسایلو له ادعاګانو سره موږ د دې مخالفت کوو چې د افغانستان بمبارد به ترهګري پای ته ورسوی او کله چې خلکو ته وایي، هو، موږ باید ترهګري له منځه یوسو؛ خو په تعقل سره فکر وکړي چې موږ څه کوو. په قهر سره ساده غبرګون مه څرګندوئ، زه فکر کوم ګډ تفاهم ته به ورسېږو.

د ګډ تفاهم لپاره یو بل امکان د دوه ګونو برجونو د تراژیدي، د هغو د قربانیانو او د ژوندي پاتې شویو د کورنیو د غړو دلیل دی چې راغلل او ویې ویل: «موږ غچ اخیستل نه غواړو.» د وال ستریت ژورنال Wallstreet Journal د اکتوبر په اتمه نېټه یو ډېر په زړه پورې سرلیک درلود: «د قربانیانو زیاتره خپلوان له دې امله د نارامۍ احساس کوي، چې وېرېږي ډېر بېګناه او بېوزلي خلک به په دې ځوابیه حملو کې مړه شي.»

په دې مقاله کې د چارلس کریستوپ Charles Christophe له خولې چې مېرمن یې د سپټمبر د یوولسمې نېټې په پېښه کې مړه شوه، رانقلوي او لیکي: «کاشکې ما کولای شوای چې د مرګ مخه ونیسم، چې نور زیات بېګناه خلک مړه نه شي.» Orlando او Phyllis Rodrigues یو

دېرش کلن زوی د سپټمبر په یوولسمه نېټه له لاسه ورکړ: «هېڅ شی به دغه درد پاک او ورک نه کړي، سره چې موږ باید ژوند کول ورسره زده کړو، د نورو د دردونو سبب کېدل، د نورې خرابۍ د رامنځته کېدو سبب کېږي.» نوموړي لیکلي وو. زما په باور سره په لومړي سر کې ډېرو وګړو د دې جنګ ملاتړ وکړ او هیله یې درلوده چې په یو ډول به د ترهګرۍ په له منځه وړلو کې اغېزه وکړي، خو زما په فکر چې هغوی د دغې مفکورې په اساس چې بدل به زموږ د پالیسۍ اساس وي، بېرته یې خپل فکرونه واړول.

ما یوازې له یوه داسې سړي څخه واورېدل چې ما ورسره په Greensboro چې په شمالي Carolina کې واقع دی، لیده کاته وکړل. لیکوال David Patorti نومېده. ورور یې د دوه ګونو برجونو په پېښه کې وژل شوی و. هغه له واشنګټن ډي سي نه تر نیویارک سیټي پورې په مظاهره کې چې د سپټمبر د یوولسمې پېښې د قربانیانو د کورنیو غړو جوړه کړی وه، ګډون کړی و. مارش کوونکو غوښتل چې خپل ژور احساسات له دې امله څرګند کړي چې له غچ اخیستلو نه باید ډډه وشي او په دې یې ټینګار کاوه چې د ترهګرۍ د ستونزې لپاره باید نورې بشري لارې چارې ولټول شي.

David New York Times یو عکس خپور کړ چې د ۲۰۰۱ کال د ډسمبر د دویمې نېټې لاریون یې ښوده خو دا ورته نه و کښل شوي چې ګواکې د جنګ ضد احتجاج کوي. David ټایمز ته په یو لیک کې ولیکل او څرګنده یې کړه. کله چې ټایمز په دقیق ډول په لاریون کې زموږ شته والی انځور اوه او عکسونه یې اخیستل، دا سمه وه، خو هغه څه چې موږ تر سره کول، ویې نه ښودل او نه یې زموږ د اهدافو په باب چې له اتو

ورځو راهیسې مو مارش کړی و، څه څرګندونې وکړې. عکاس د عکس په اخیستلو سره ستره دنده تر سره کړې وه. موږ نیویارک ته د دې لپاره نه وو راغلي چې زموږ تصویر واخیستل شي، زموږ هدف او غوښتنه دا وه چې په افغانستان کې د جنګ مخنیوی وشي.

خو ټایمز دغه مکتوب خپور نه کړ او یوازې د عکس شرح یې چاپ کړه. پېښه په نابشپړه توګه توضیح شوې وه. داسې یادونه یې نه وه کړې چې په پای کې یې په ګوته کړې وای چې د اتو ورځو د مارش پای. په سانفرانسیسکو کې نړیوال بدلون مرسته وکړه، چې د سپټمبر د یوولسمې نېټې د وژل شویو خلکو د کورنیو له غړو سره په افغانستان کې ملاقات تنظیم شي. دغه سفر د دواړو خواو خلکو ته چې د زړونو ټوټې یې له لاسه ورکړې وې او هم په افغانستان کې له هغو خلکو سره چې د امریکایي بمبارد په اثر یې د سترګو تور له لاسه ورکړی وو، ترسره شو. ریتا لاسار Reta Lasar چې ورور یې د نړیوالې سوداګرۍ په مرکز کې له لاسه ورکړی و، د امین سید په نوم له یوه شخص سره چې ورور یې دوه میاشتې وروسته په کابل کې د ړندو بمونو په اثر وژل شوی وو، کتل. نوموړې امریکنۍ میلمنې ته وویل: «هغه ستا ورور و او دی هم زما ورور. موږ ټول سره خویندې اوورونه یو.» یوه بله ډېر مهمه موضوع دا ده چې جنګ په حقیقت کې تر اوسه د دې هېواد خلکو ته چې اړ دي، ډېرې ستونزې راولاړوي. د دې هېواد د یو شمېر خلکو په باب یو شمېر رپوټونه شته چې ډېر وږي دي، ماشومان یې له لوږې سره مخامخ دي. نیویارک ټایمز رپوټ راکوي: «بېکارۍ زیاتېږي او د کورورنو بیه تر اوسه لوړه ده. زیاتره ښارونه همدا اوس له بې کورۍ سره مخامخ دي. کورونو او د اوسېدو ځایونو کې له اندازې زیاته ګڼه ګوڼه ده. دا کال ډېر خلک نور په ځمکه

باندې د سوشل سرويس په مرکزونو او په درينګه ځمکه ځملي يا په ګاډو کې ځملي او يا د سرکونو پر سر شپه تېروي.» په پنځه کلنه دوره کې چې د دموکرات او جمهوري غوښتونکو ګوندونو قانوني دورې پای ته رسېږي، د هغو کورنيو د اړونده ماشومانو لپاره د فدرالي مرستو تضمين هم پای ته رسېږي، چې د جنګ په اثر له ډېرو ستونزو سره مخامخ دي. موږ اړ يو چې د جګړې د کنډرو او کنډوالو په ژورو کې په دې وپوهېږو چې د بوش اداره له جګړې څخه د هغه راولاړ شوي ناوړه مالي حالت د پوښلو لپاره کار اخلي چې اوس په هېواد کې رامنځته شوی دی. په دغه مهال کې د زياترو امريکايانو ستونزو ته هېڅ پام نه کېږي. خو کارپوريشنونه نور هم بډای کېږي. زه فکر کوم چې د طبقې په مسايلو تمرکز او هغه مرستې چې کارپوريشنونو ته ورکول کېږي پرې، تمرکز يوه انتقادی مسأله ده. و ګورئ اوسني په اصطلاح اقتصاد ته چې په پارونکې توګه پروګرام ته پام زه هره ورځ د پارونې په لغت زندی کېږم.

دوی څوک زندی کوي. دا (GM (General Motors راپاروي او د نه ورکولو امتياز ترلاسه کوي او ټول هېواد خپه کوي چېويني، د GM، IBM او فورد ۷۰FORD ميليونه ډالره ټکس نه ورکوي. زه فکر کوم چې د اقتصادي عدالت موضوع يوه داسې موضوع ده چې خلک ورته سملاسي ځواب وايي. ما يوازی له Seymour Melman سره چې د کولمبيا په پوهنتون کې يې «له کپتاليزم نه وروسته» په نوم يې يو ډېر خوشبينانه کتاب کښلی، د تيليفون له لارې خبری وکړې. نوموړي د جګړې ضد غورځنګ يو ډېر مهم تاکتيک ته ګوته ونيوله چې کېنې لاسي په پرله پسې توګه د جګړې ضد او پر جنګ پسې د جنګ ضد حالت کې دی، خو پرته له دې چې د ستونزو په ريښو وپوهېږي او دا اقتصادي

سیستم چې موږ په کې ژوند کوو، جنګ ته اړتیا لري او په حتمي توګه جنګ جوړوي. د نوموړي اشاره دې ټکي ته ده، چې په واقعیت کی هغه مبارزه چې په جنګ باندې تمرکز ولري او یا د وطن پالنې په هر ډول اتموسفیر باندې تمرکز ولري او زیات تمرکز یې په اقتصادی مسایلو وي، باید له جنګ څخه غافل نه شو. البته د دې سیستم په ماتې کې چې له بشري اړتیاوو سره باید احتیاط وشي، موږ د امریکا له خلکو سره ډېره قوي ژمنه لرو. په حقیقت کې کېدای شي دوی نور هم چمتو کړي چې موږ ته غوږ کېږدي، چې د جنګ په باب څه وایو.

## ***آیا تاسې فکر کوئ چې په ملکي آزادیو باندې حمله، په بله سیمه کې د بهرنیو ګډو اهدافو لپاره د جګړې یوه لړۍ ده؟***

په رښتیا سره چې دا د ګډو هدفونو لپاره یوه ډېره مهمه سیمه ده. په دې اساس د عامه آزادیو مسأله ډېره حساسه او باریکه ده، ځکه چې د عامه افکارو سروې ښیي چې اکثر خلک د دې لېوال دي چې د جنګ د دوام په اساس دې ته اړتیا ده چې ملکي آزادي محدوده شي. زه فکر کوم د دې ډول بندیز لپاره چمتووالی د دې مفکورې پر اساس ولاړ دی، چې په ځینو نامالومو لارو به د ترهګرۍ د مینډلو لپاره مرسته وشي. همدارنګه له دې افکارو سره مخالفت زیات او موازي بحثونه غواړي. یو دا چې په کوم درک سره جنګ د ستونزو د حل لاره نه ده او دویمه دا چې کوم شیان چې تاسې یې څرګندوئ د هغه له مخې دا نوي بندیزونه زموږ د ټولو آزادیو ته د خطر سبب جوړېدای شي. دا یوازې مسلمانان نه دي چې له دې پېښو به تاواني شي. زه فکر کوم چې موږ باید هر چېرې چې کولی

شو، یوه دوره وکړو. د نازیانو په باب د Pastor Miemoller مشهور بیان اوس هم په دې شرایطو کی د وړاندیز وړ دی.

**لومړی دوی د کمونستانو د پلټلو لپاره راغلل. خو زه کمونست نه وم. ما وویل هېڅ شی نه یم. وروسته بیا دوی په سوسیال دموکراتانو پسې راغلل خو زه سوسیال دموکرات نه وم. په دې اساس ما هېڅ نه و کړي. بیا د سوداګرۍ اتحادیو په غړو پسې راغلل، خو زه د سوداګرۍ اتحادیو غړی نه وم. وروسته دوی په یهودیانو پسې راغلل خو زه یهود نه وم، خو ما لږ څه وکړل. وروسته چې کله ما پسی راغلل نو هلته هېڅوک پاتې نه وو.**

څنګه یې کولی شول چې نور ما ته ځند وکړي. دا یوازې مسلمانان نه دي، بلکې هر څوک چې خبرې کوي له خطر سره مخامخ دي. دلته نژدې شل میلیونه کډوال دي. دوی د لنډې مودې مېلمانه او په دې هېواد کې لا د تابعیت حق نه لري. اوس باید د اجرائیوی حکم له مخې او د متحده ایالاتو د کانګرس له خوا د هېوادپالنې د پاس شوې لایحې له مخې ټول دې ته برابر دي چې یا له پوځي لارې محاکمه شي او یا دیپورت شي او یا په دایمي بند محکوم شي. لکه څنګه چې انتوني لیویس ګوته نیسي، وایي کله چې میلیونونه خلک دلته راغلل چې د ښه ژوند لپاره مبارزه وکړي؛ خو که څوک دا ګمان وکړي چې دوی له تروریزم سره څه اړیکې لري، اوس به وپوهېږي، چې دوی تر خطر لاندې دي. یا به بندیان شي او یا به هغه وشي چې په پوځي توګه محاکمه شي. د نیویارک ټایمز د وینا له مخې «کانګرس همدارنګه سي آی اې CIA ته نوی قانوني واک ورکړی چې هغه خلک چې په متحده ایالاتو کې دي، تر څارنې لاندې

ونيسي». د دې بنديزونو بيا لګولو د هغه ايجنسيو ځاى ونيو چې د ۱۹۷۰ کلونو وروسته د خلکو د ملکي آزاديو د تهديد له امله تر انتقاد لاندې وې. د سترې محکمې قاضي Sandra Day O ' Lonnor له ملاقات نه وروسته وويل: «صفر شرايط». په نيويارک کې کېداى شي چې موږ په فردي آزاديو باندې نور بنديزونه ولګوو، کله چې د سترې محکمې قاضي چې وايي دا واقعاً موږ ټولو ته د خپګان او تاثر خبره ده.

د مرکزي قانوني حقونو لپاره څارنوال Nany Chang له خولې چې وايې د سپټمبر له يوولسمې نېټې راهيسې د بوش د ادارې کړنې د دې خبرداری ورکوي چې ملکي آزادي به په عامه توګه ځنډول کېږي او دا به تر هغو پورې چې په تروريستي فعاليتونو کې ښکېل وي. هغه وويل دا کار د متحده ايالاتو د هېوادپالنې د لايحې له مخې، د دې سبب کېږي چې سياسي مخالفين په قانوني توګه جنايتکاره ثابت شي. نوموړي اخطار ورکړ چې دا اجرائيوي څانګې د تعامل نه وتلی ضمانت دی او په لويه پيمانه سروې کوونکو ته د دې وس ورکوي چې ان د انټرنټ له لارې برېښناليکونه هم چک او وپلټل شي او همدارنګه په حساسو شخصي ريکارډونو باندې څارنه او اقتصادي تبادلاتو باندې د برلاسي وس لري.

***داسې ښکاري چې د جګړې ضد احساسات په بهر کې ډېر پياوړي دي، خو په ډله ييزو وسايلو کې د امريکايي ضد اپوزيشن په توګه ورته هېڅ پام نه کېږي.***

زه فکر کوم چې د جګړې ضد احساس نسبت بهرنۍ نړۍ ته، په متحده ايالاتو کې له دې کبله کمزوري دي، چې حمله پر دې ځاى وشوه او د

دې هېواد په خلکو يې ډېره ژوره رواني اغېزه درلوده. دا د جګړې ضد غورځنګ ته ډېره مشکله وه چې د دغه ډول پېښې سره معامله وکړي، پر هغه لاسبري شي او د پالیسی په اړوند مهمې پوښتنې مطرح کړي. هغه خلک چې په متحده ایالاتو کې نه دي، زیاتره یې پراخ نظر لري، زیاترو یې ترهګري او نورې غمجنې پېښې زغملې دي او ځینې نور یې چې ان د سپټمبر د یوولسمې پېښې په نسبت ډېر ترهوونکې پېښې تېرې کړې دي. زه همدارنګه فکر کوم چې دوی وکړای شول چې په لویه پیمانه او پراخ نظر ورته وګوري. په دې وروستیو وختونو کې مې له بمبیي څخه د یو سړي برېښنالیک ترلاسه کړ. نوموړي په خپل لیک کې د طبیعي ناورین په باب خبرې کړې دي. داسې ناورین چې د کارپوریشنونو له خوا منځته راغلی، لکه د بهوپال د وژونکی ګاز خپرېدل، کوم چې د دوه ګونو آسمانڅکو برجونو د پېښې په تناسب په کې ډېر کسان ووژل شول. دغه ناورینونو متحده ایالاتو ته د ماتم نښې نښانې را نه وړې، په داسې حال کې موږ د سپټمبر د یوولسمې نېټې پېښې ناپایه ماتم نیسو، داسې نه چې د دوه ګونو آسمان څکو د قربانیانو ماتم کول بې ځایه دي. هو باید غمجن اوسو خو ولې د نورو هېوادونو د خلکو لپاره هم خواشیني او په ماتم کې ونه اوسو؟ څوک په قصدي توګه له جګړې څخه د بشري سودجویي قربانیان دي؟ د دې ټولو امریکایي ضد پوښتنو په اړه، لازمه ده چې غور وشي.

زه فکر کوم که تاسې له نژدې څخه ګورئ په هغه څېر چې د بهرنی نړۍ خلک د امریکا په وړاندې غبرګون څرګندوي، تاسې به ډېر ناجوت او ناڅرګند عکس‌العمل ووینئ. له یوې خوا تاسې د امریکا له سیاستونو، د امریکایي شرکتونو د تحکم او په نهایت کې د امریکایي پوځي لاسوهنو

په وړاندې په بهر کې دوښمني او مخالفت وينئ اوله بلې خوا تاسې يو وار بيا او بيا منفرد امريکايان او د امريکا خلک د دوستۍ او ملګرو په سترګه ليدلی شئ.

زما يوه ملګرې چې په مراکش کې له سوله‌ساتي ځواک سره کار کوي، نوموړې يوه امريکايۍ يهوده ده چې په مراکش کی چې يو مسلمان هېواد دی اوسي. هغې ما ته وليکل چې د دې ځای خلک ان په سرکونو کې چې کله د امريکايي سياستونو پر ضد مظاهره کوي، ډېر مينه ناک دي.

***په روان اقتصادي بحران کی داسې مالومېږي چې د افغانستان جګړه هم د «تېوپک د قانون» مسايل راپورته کوي.***

زه فکر نه کوم چې د امريکا خلک دې په دې خبر وي، چې په جنګ کې څومره پيسې لګېږي. اکثريت وګړي په دې اړوند ډېر ناڅرګند فکر لري چې د پوځي بوديجې اندازه څومره او څومره زياته ده. ان تر دې چې د متحده ايالاتو د پوځي لګښت يوه اندازه کولی شي چې د زيات شمېر امريکايي وګړو د روغتيا او امنيت اساسي ستونزې حل کړي. دا ډېره مهمه موضوع ده چې بايد خبرې پرې وشي.

د دفاعي راکټونو ملي پروګرام پرمخ بيول چې په سملاسي توګه يې ۸،۳ بليونه ډالره لګښت دی، د ايکانوميست مجلې رپوټ ورکړ چې د بشپړ سيستم د پلي کولو بيه کېدای شي نژدې ۲۰۰ بليونه ډالره شی.

د بوش اداره اوس د پوځي لګښتونو لپاره د ۴۸ بليونو ډالرو د زياتوالي غوښتنه کوي چې د رونالد ريګن د لومړي کال له واکمنۍ نه وروسته ډېر

لوی رقم دی. «پر دې ټولو سربېره» نیویارک ټایمز رپوټ ورکوي چې پنتاگون پلان لري چې په راتلونکو دوو میاشتو کې د سملاسي بودیجې غوښتنه وکړي چې د افغانستان د جگړې روان لگښتونه پوره کړي. کانگرس د دې هدف لپاره د تېر کال په وروستیو کې ۱۷،۵بلیونه ډالره برابر کړي وو.

دغه پیسې د بوش د ټکس د قطع کېدو د ۱،۳ تریلیون سره یوځای دي. په پام کې ده له ټولنیزو پروگرامونو څخه چې لا له مخه د راټولېدو په حال کې وې، جلا شي. د بوش نوې پوځي بودیجه چې په نورو هر ډول شیانو باندې کلک او څرگند بندیز لگوي. وال ستریت ژورنال په وروستیو وختونو کی رپوټ ورکړ: دا د رواني ناروغیو له پروگرام، ښوونې او روزنې، روغتیاپالنې، د لویانو لپاره د درملو د نسخو او د عامو وگړو د کورونو پروگرام څخه ترلاسه کېږي. نیویارک ټایمز د جنوري په ۱۴ نېټه په غټو تورو ولیکل: «چټل غوراوی، دولت د روغتیایي مرستو له کمولو سره مخامخ کړ. دغه کمښت به په میلیونونه خلک تاواني کړي.»

دا په دې هېواد کې یوازې د ټوپکو د مقابلې مسایل نه؛ بلکې دا د ټولې نړۍ له بشري حقوقو سره د ټوپکو مقابله وه. فاینانشیل ټایمز په دې وروستیو وختونو کې یادونه کړې چې د متحده ایالاتو د بهرنیو مرستو په برخه کې یوازې په سلو کی د ملي عاید ۰،۱ لگښت کړی دی او بهرنۍ مرستې یې هم بشري مرستې نه دي.

تاسې متحده ایالات وینئ چې یوازې ډېره لږه اندازه په نړیوالو کتلوي ستونزو لکه AIDS کې لگوي. متحده ایالات یوازې ٤٦٠ میلیونه ډالره په کال کې له ایدز سره د مبارزې لپاره مرسته کوي چې په حقیقت کې

بلیونونو ته اړتیا ده. که متحده ایالاتو دغه زیات رقم په پوځي لګښتونو نه لګولی، نو کولی یې شول، د میلیونونو انسانانو ژوند خوندي کړي او دغه اضافي پیسې وساتي.

زه فکر کوم چې خلک باید په دې پوه شي چې دا نه یوازې بشري تاثر منځته راوړي بلکې که دا پیسې ولګول شي، چې د ایدز په باب څه کار وکړي نو که اوږده موده په نظر کی ونیسو؛ نو دا خبرې د ټولې نړۍ په روغتیا او سلامتي پورې اړه لري.

د جنګ په مهال بوش په آزادانه توګه په میډیا کې راڅرګندېږي، نیویارک ټایمز په یوه ډېره ناوړه سرمقاله کې ولیکل: د ښاغلي بوش نوې جاذبه، هغه چې دوی وایي، سره له دې چې له سیاسي او پوځي مخالفتونو سره مخامخ دی، په ټوله مانا د کامپلکس د سمبالښت عمومي قومانده ورسره ده.

دا یوازې نیویارک ټایمز نه دی، په کینې لوریو کې هم داسې خلک شته کوم چې په درناوي سره د بوش په باب خبرې کوي چې هغه په جګړه کې ښه ونډه ترسره کړه. د دوی زیات شمېر کسان واقعاً په حیرانوونکي ساده توب سره په د هغه د لومړیو ویناوو په وسیله تېرایستل شوي دي. ما ته هغو لیبرالانوان، رادیکالانو چې په یوه حد کې یې د جګړې ملاتړ کاوه او له شیطان سره یې تړون کړی و خو دوی پری پخپله نه پوهېدل، پخپله یې په دې عبارت سره ځان ته دا مشوره ورکړه چې لکه «محدود پوځي قطعات» او «یوه اندازه ځواب» لکه که چېرې دلته ځینې شیان په یوه اندازه او محدود وي لکه کلستر یا غوړېدونکي بمونه، پنځلس زره پونډه Daisy Cutters غوړېدونکي بمونه نو دوی فکر کوي چې دوی کولی شي له

يوې خوا ښايي محدود پوځي عمليات وکړي او له بلې خوا په ټولنيزه او عامه آزاديو باندې په حملو پړه واچوي. تاسې ډېر ځله په آزادو مطبوعاتو کې وينئ چې له يوې خوا دغه مطبوعات د جګړې ملاتړ کوي او له بلې خوا داسې فکر کوي چې لوی څارنوال JOHN ASHCROFT د خلکو د بنديانول او د پردې شا ته څېړنه او پلټنه ناسم کار دی. دوی په دې نه پوهېږي چې دا دواړه کړنې د يوې سکې دوه مخه دي.

***کريستوفر هيچېن Christopher Hitchens په خاص ډول پر هغو کسانو حمله کوي او ښکنځل ورته کوي چې د جګړې پر ضد خبرې کوي.***

هغه کسان لکه هيچين په جدي توګه د هغو خلکو حالت بدلوي چې د جګړې پرضد وو.

دوی هغه کسان لکه زه او نومان چومسکي Noman Chomsky په افکارو باندې چې موږ نه دي ويلي دا تور لګوي، دوی په دروغو دعوه کوي چې هغه څه چې په نيويارک کې پېښ شول موږ يې توجيه کوو او وايو: «موږ يې مستحق وو.» داسې خلک چې زه يې پېژنم د جنګ پر ضد خبرې کوي، يوه يې هم داسې خبره نه ده کړې.

***د هغو کسانو په يوه لېست کې چې لومړی امريکا ملامتوي، ستاسې نوم هم و. دغه لېست (Rustees Council) او Alummi (ACTA) له خوا چاپ او خپور شوی و. د رپوټ لومړۍ کاپي وروسته بدلون***

***ومونډ او وروسته پوهانو ته وویل شول، په امریکا کې له حملې سره د ځواب کمزوري تړاو.***

هو! زه خوشحاله وم چې زما نوم په لېست کې و، زما خپل خپګان په یاد و چې ولې د جمهور ریس نیکسن د دښمنانو په لېست کې نه وم او په دغه ډول زیاتو لېستونو کې نه وم. البته چې اف بي آی FBI زه له پامه نه یم غورځولی. دوی زما په باب لویه دوسیه لري خو ډېر وخت کېږي چې ما تغافل احساساوه. د هغو کسانو لېست جوړول چې د جګړې په باب ویناوې کوي او داسې نتیجې ته رسېږي چې دا هغه خلک دي چې له سرحده اخوا دي. د جان اشکرافت له بیانونو سره عیار دی چې د هغو خلکو په اړوند چې د هغوی د فشار له سیاست سره مخالف دي. د مشرانو جرګې د عدلي کمېټې له اعلامیې د مخه چې د ډسمبر په ٦ نېټه یې وکړه، هغه وویل: «هغه کسان چې د سولې مینه وال خلک په پانتوم سره د آزادیو په له منځه وړلو ډاروي، زموږ پیغام ورته دا دی چې ستاسو تاکتیک یوازې له ترهګرۍ سره مرسته کوي، د دې لپاره چې زموږ ملي یووالی له منځه وړي او زموږ اراده کمزورې کوي، دوی د امریکا دښمنانو ته مهمات ورکوي او د امریکا دوستانو ته د تأمل او فکر کولو موقع ورکوي. دا همېشه د خیانت سم دم یو قانوني تعریف دی، چې په بدل کې ورته د مرګ سزا ورکول کېږي.

که تاسې دوی ته وګورئ، په دغه بیان کې د ACTA لېست رانقل شوی دی چې دا اکثراً بې‌زیانه ځرګندونې دي. Jesse Jackson داسې یو لېست جوړ کړی دی چې د هغه د وینا پر اساس، امریکا دې د اړیکو لپاره یو پل جوړ کړي. نه یوازې ساده بمونه او دېوالونه پر ما باندې. د دې لپاره انتقاد شوی چې کېدای شي زموږ امنیت یوازې زموږ د ملي ثروت په

کارولو سره تامین شي، نه د ټوپک، بمونو او الوتکو له لارې. خو د خلکو د روغتیا او هوساینې لپاره او د هغو خلکو چې په نورو هېوادونو کې ستونزې ګالي.» د لومړیو بدلونونو ساده تمرینات دي. دا چې وايي موږ باید خپل حکومت انتقاد کړو، همدا بس دی چې د لیین چېینی Lynne Cheney په لېست کې شامل شي. زه فکر کوم چې دا باید د نورو خلکو پام هم ځان ته راواړوي ځکه چې زه فکر کوم چې امریکایان د آزادو خبرو د بندولو یا کنټرول په برخه کې حساس دي. له بده مرغه چې دوی اکثر په هغه چا چې په سیده توګه د امریکا تابعیت لري تحریک کېږي نسبت هغه چا ته چې یوازې مسلمان یا کډوال وي. دا مهال ما ته زیاتره د سړې جګړې دوران رایادېږي. د سړې جګړې په دوران کې د ځواکمنو خلکو له خوا نه یوازې د کمونیستی ګوندونو غړي بلکې نور خلک هم په تور لېست کې شامل بلل کېدل. ان په پراخه پیمانه خلک په دغه لېست کې شامل وو. دوی د «کمونیستی جبهه» سازمانونه «کمونیستی عمل سازمانونه» او د کمونیستو پلویانو سازمانونو په نامه وېشلي وو، خو ټول یې خطرناک بلل کېدل.

زما په یاد دي، زه په هغه وخت کې د اتلانتا ایالت د جیورجیا په یو ډېر ښه ځای کې اوسېدم، د دې لپاره چې وکولای شي د جورجیا په دولتي پوهنتون کې درس ورکړای شي. زما یو ملګری دې ته اړ کړی شوی و چې داسې یو سوګند لاسلیک کړي چې نه یوازې هغه د اوږده لېست د بېلابېلو سازمانونو په ګډون د یوګوسلاویا د Seaman`s کلب او د امریکا د طبیعي ملګرتیا Nature Friend of America سره تړاو لري، بلکې له دغه سازمانونو سره یې د مخه هم کومې اړیکې نه درلودلې.

د پلټنو دغه پراختیا د ستونزو د ایجاد لپاره د ۱۹۵۰ کلونو د پېښو ډېر بې گټې توب راپه زړه کاوه.

McCarran - Walter د کډوالۍ پرېکړه چې په ۱۹۵۲ کال کې لاسلیک شوه، له محاکمې پرته اصلي هېواد ته د بېرته استولو قانوني بنسټ رامنځته کړ چې د بوش اداره نن دغه عمل تکراروي. د ۱۹۵۰ کال د کورنۍ امنیتي قانون ته دا واک ورکړل شوی دی چې داسې کمپونه باید جوړ شي چې په هغو کې هغه شکمن کسان چې ملي امنیت ته گواه وي، وساتل شي، باید په یاد ولرو چې مارتین لوترکینگ هم د اف بي آی له خوا د ملي امنیت ته د گواب په نوم معرفي شوی و. په پټو اسنادو کې د داسې کسانو په ډله کې راتلو چې کېدای شوای د پیسو په ورکړه او یا بل مادي قوت په وسیله ملي ضد وي. د تاریخپوه David Garrow د وینا له مخې د لېست په باب پرېکړه شوې وه چې په فردي توگه هغه کسان چې ملي امنیت ته خطرناک وي، په اسانۍ سره د جمهوري ملي اعلامیې مطابق په اضطراري حالت کې بندې شي. د اتلانتا (Atlanta FBI) دفتر ته لارښوونه شوې وه چې کینگ King هم باید په دغه لېست کې ورزیات شي.

دلته د سړې جگړې او اوسني دوران ترمنځ یوه بله مهمه اړیکه شته. ترهگرۍ د هېواد د پوځي منطق په توگه د کمونیزم ځای نیولی دی. سپه بهر کی د پوځي پرمختگونو لپاره او په د ننه کې پر عامه آزادیو باندې د فشار لپاره همدا یو هدف لري او هغه وېره اچول دي.

د کمونیزم مفهوم په بشري حقونو باندې د سخت او فوق العاده تېري په توگه توجیه کېده. د سړې جگړې په موقع داسې زیات د کمونیزم پر ضد جگړه توجیه شوې ده چې په جنوب شرقي کې د میلیونونو انسانانو او

همدا ډول په مرکزي امریکا کې د سلګونو زرو کسانو د وژنې او مرګ سبب شول. هڅه وشوه چې د کمونیزم په ضد سره د مبارزې په لړ کې باید ان د هغو خلکو او حکومتونو په وړاندې چې له کمونیزم سره یې هېڅ اړیکې نه درلودلې، خو مخالفت یې کاوه، مبارزه وشي. په ۱۹۵٤ کال کې متحده ایالاتو، د ګواتیمالا حکومت چې کمونیست نه و، له واکه وغورځاوه چې د میوې د اتحادیې شرکت له منځه وړی و. په ۱۹۷۳ کال کې د چیلي حکومت له کمونیزم سره د جګړې په نوم له پښو راوغورځول شو، دا حکومت کمونیستی نه و خو د اندکوندا کوپر او ای تي تي په زړه یې کار نه کاوه. موږ اړ یو چې دا تاریخ را په زړه کړو او له نن ورځې سره ورته رابطه ورکړو. نن سړه جګړه پای ته رسېدلې ده، زه فکر کوم چې د امریکایانو ته کېدونې ده چې په ډېره ارامۍ سره هغه څه وکړي چې موږ هغه د سړې جګړې په دوران کې وکړل، کوم چې نن په ډاګه کېږي او احساس کېږي چې وړاندیز وشي چې «له ترهګرۍ سره جګړه» په هماغه ډول کې پر مخ یوړل شي.

## درېيم څپرکی

## سوله غوښتونکی ملت

***کله چې جورج بوش اعلان وکړ چې په افغانستان باندې بمباري پيل شوه نوموړی وويل: «موږ سوله غوښتونکی ملت يو.» په دې اړوند ستاسو عکس‌العمل څه دی؟***

ډېر ښه، څرگنده ده چې بوش هېڅ تاريخ نه دی لوستی او تاريخ يې هېڅ زده نه دی، ان د خپل دوران تاريخ يې په ياد کې نه دی، ځکه چې متحده ايالات له اوږدو وختونو راهيسې په جنگ کې ښکېل وو. تاسې هېڅکله اصلي بومي امريکايانو ته نه شي ويلی چې موږ يو سوله دوسته ملت و خو کله چې دغې وچې ته راغلو نو د هنديانو پر ضد په سلگونو جنگونو کې ښکېل شو. د تېرې پېړۍ په لومړيو شلو کلونو کې متحده ايالات لږ تر لږه په کارابين کې په شلو پوځي عملياتو او لاس‌وهنو کې ښکېل و او له دويمې نړيوالې جگړې نه وروسته ان تر ننه پورې موږ په پرله پسې او ناپايه توگه جنگونه، پوځي تېري او لاس‌وهنې درلودې.

د نړۍ په تاريخ کې له ډېرې ويجاړوونکې جگړې يعنې دويمې نړيوالې جگړې څخه يوازې پنځه کاله وروسته موږ په کوريا کې په جگړه بوخت وو. وروسته بيا نژدې په سملاسي توگه موږ په اندونيزيا کې د فرانسويانو په مرسته بوخت وو او په سلو کې اتيا مو د هغوی پوځي وسايل تأمينول

او ډېر ژر بیا په سهیل ختیځه آسیا کې ښکېل شو. موږ نه یوازې په ویتنام بلکې پر کمبودیا او لاوس هم بمباري وکړه. په ۱۹۵۰ کلونو کې په پټه موږ د ایران او گواتیمالا د رژیمونو په راپرزولو کې ښکېل وو او کله چې موږ په ویتنام کې ښکېل شو، د دومینکن جمهوریت ته مو هم پوځي قوتونه ولېږل او په هغه وخت کې موږ د اندونیزیا حکومت ته په لویه پیمانه مرستې ورکولې چې دیکتاتور سوهارتو د خپلو مخالفینو په چقولو کې کورنۍ جگړه پر مخ بوځی؛ د هغه په نتیجه کې په سلگونو زره کسان ووژل شول. وروسته د متحده ایالاتو حکومت په ۱۹۷۵ کې اندونیزیا ته د انتقادي ملاتړ په نوم مرستې برابرې کړې چې د ختیځ تیمور د خلکو غورځنگ یې په ډېر وحشیانه توگه وځپي. په هغه کې په سلگونه زره کسان ووژل شول. کله چې په ۱۹۸۰ کلونو کې ریگن د واک په څوکۍ تکیه وکړه، موږ په مرکزي امریکا او السلوادور، هندوراس، کوستاریکا او په خاص ډول د نیکاراگوا د پاکولو او غورځولو لپاره پټه جگړه پیل کړه. انقلابي ضد قوتونه مو چې ریگن «د آزادي جنگیالی بلل» ایجاد کړه.

په ۱۹۷۸ کې ان تر مخه تر دې چې روسان افغانستان ته ولاړ شي، موږ په پټه توگه په افغانستان کې یاغیانو (اشرارو) ته وسلې ورکولې چې له دغو څخه یو شمېر چې وروسته طالبانو ته واوښتل، دا هغه کسان دي چې اوس سملاسي زموږ دوښمنان دي. د کارتر د ملي امنیت سلاکار زبیگنیو بریژنسکی لاپې وهلې او په دې پوهېده چې د متحده ایالاتو مرستې به په افغانستان کی «دشوروي د پوځي لاس‌وهنې سبب شي». په حقیقت کې دا هر څه وشول، جنگ پیل شو اوولس کاله تېر شول. دغې جگړې د افغانستان خلک وځپل او هېواد یې په کنډوالو بدل کړ. دغه شېبې تېرې شوې خو متحده ایالاتو ترې په سملاسي توگه خپلې پښې سپکې کړې،

هغه خلک چې موږ یې ملاتړ کاوه، بنسټ پالي وو، چې په افغانستان کې یې واک ترلاسه کړ او خپل رژیم یې جوړ کړ.

وروسته ډېر ژر ښاغلي ولسمشر جورج بوش په ۱۹۸۹ کې د واک په څوکۍ کښېناست. نوموړی د پاناما پر ضد جګړه پیل کړه چې څو زره کسان په کې ووژل شول. دوه کاله وروسته موږ په خلیج کې په جګړه اخته شو، په کویټ باندې یرغل مو پلمه کړ، چې په سیمه کې پوځي حضور ته شدت ورکړو او په سعودي عربستان کې عسکر ځای پر ځای کړو، چې وروسته د اسامه بن لادن او نورو سعودي ملتپالو لپاره د مهمو خوابدیو سبب شو. له هغې وروسته د کلنټن اداري په افغانستان، سودان، یوګوسلاویا او عراق بمباری وکړې. په دې اساس کله چې بوش موږ د یوه سوله دوست ملت په نوم یادوي، په دې مانا چې د یوې لویې اندازې تاریخ هېرول دي. اوس ښایي دغه تاریخ به د بوش لپاره چې پرې پوه شي ډېر زیات وي، خو د دې ډېره لږه اندازه به بس وي چې وړاندېز وکړي او ووایي چې موږ سوله غوښتونکی ملت نه یو.

په حقیقت کې به دا پر ځای وي چې ووایو چې څرنګه چې د دویمې نړیوالې جګړې راهیسی به په نړۍ کې د متحده ایالاتو په نسبت بل جګړه مار ګواښوونکی ملت نه وي.

***نیویارک ټایمز د ۲۰۰۱ کال د سپټمبر په ۲۳ یو سرلیک درلود، په دې مانا: «تېر هیر: دا د بلې هرې جګړې په څېر نه ده.» که چېرې موږ دا لارښود منلی څه به پېښ شوي وای؟***

دوی له موږ غواړي چې داسې چلند وکړو لکه پرون چې زېږېدلي اوسو.

دوی له موږ غواړي چې د خپل حکومت تاریخ هېر کړو، ځکه که چېرې تاسې تاریخ هیر کړئ، لکه چې تاسې پرون زیږېدلي واست، نو تاسې به په هر څه باور وکړئ.

څه فکر کوئ موږ تکساس، کلورادو، نیویارک، اریزونا او کالیفورنیا لاس ته راوړل، ځکه چې مکسیکویانو موږ خوښولو او دا یې موږ ته راکړل؟ نه موږ د مکسیکو په جګړه کی دغه سیمه غوښته او موږ فکر کاوه چې مکسیکویان باید خوشحاله او مشکور وي چې موږ ترې ټوله خاوره ونه نیوله. خو د مکسیکو جګړه په دروغو پیل شوه، هلته د مکسیکو په پوله یوه پېښه واقع شوه، امریکایي عسکر دغه لانجه مني سیمې ته ورننوتل او خلک ووژل شول. جمهور رییس جیمز پولاک وویل: «وینې په امریکایي خاوره.» او ډېر ژر پوځونه مکسیکو سیتي ته په لاره وو، چې ډېره موده لا نه وه شوې چې نیمایي مکسیکو له موږ سره وه.

په ۱۸۹۸ کال کې د Maine جنګي بېړۍ په هاوانا کې ډوبه شوه چې دغه پېښه د هسپانیا او امریکا د جګړې سبب شوه. په هر حال له هېڅ چا هېڅ کله پوښتنه ونه شوه چې ماین په هاوانا هاربور کې څه کول. دا هغه څه ته ورته دي چې څو کاله د مخه کله چې د متحده ایالتو بېړۍ په یمن کې والوزول شوه، ما داسې راپورتران و نه لیدل چې وپوښتي «دلته امریکایي ورانکاري څه کوي؟» که چېرې خلک تر یوه حده په تاریخ پوهېدای، که چېرې ښوونکې ورته د تاریخ درس ورکړی وای، که چېری میدیا ورته د تاریخ په باب څه ویلي وای، که چېرې هغه څوک چې د ډله ییزو اړیکو وسایلو باندې واک لري، یو څه تاریخ یې ورښودلی وای، ښایي دوی پوه شوي وای چې د جګړې لپاره د کانګرس وېره هماغه غوړه مالي ده چې پخوا مو لیدلې. کله چې بوش د سپټامبر له یوولسمې وروسته کانګرس ته

ورغی هر چا داسې اکت کاوه چې په داسې حالاتو کې د هغه څه په باب چې موږ يې بايد وکړو، فکر کولو ته هېڅ اړه نشته او نه د پوښتنې کولو اړه شته. ټولو د رايو په اتفاق سره د مشرانو په جرگه کې نژدې د رايو په اتفاق رايه ورکړه، دغلته يوازې يوه مخالفه رايه وه. کله چې ما دا خبره واورېده ما فکر وکړ چې دغه مخالفه رايه بايد د Vermont د آزاد غړي Sanders وي، خو داسې نه وه دغه رايه له کاليفورنيا څخه د Barbara Lee Bemi وه. په هر حال، کېدای شي چې تاريخ گټور وي، او وکولی شي چې تاسې ته د حکومت د دروغو او تېرايستلو په باب څه ووايي، که خلک په دغه تاريخ پوهېدلی، هغوی به داسې غلي ناست نه وای چې بوش ته به يې غوږ نيولای وای او دومره به تر اغېز لاندې راغلی وای چې بوش نه پوهېږي څرنگه لوست وکړي. که موږ په دې تاريخ ونه پوهېږو، موږ به په دې هم ونه پوهېږو چې موږ د نړۍ په هر گوټ کې څومره دوښمنۍ کړلې دي، نه يوازې په منځني ختيځ کې بلکې په ټوله نړۍ کې. دا د متحده ايالاتو په بهرني سياست کې ده چې څو ميليونه خلک يې د مرگ کومې ته ورټېل وهل. د نړۍ په بېلابېلو برخو کې يې د ترهگرو دولتونو ملاتړ وکړ، په خاص ډول په لاتينه امريکا او منځني ختيځ کې يې دا کار په بربنډه ترسره کړ.

که چېرې موږ هېڅ تاريخ ونه لرو، نو موږ په ټول ژوند کې د ښوونځي د دورې له افکارو سره ژوند کوو، يعنې دا چې امريکا په نړۍ کې د دموکراسي او آزادۍ لپاره جوړه شوې ده. موږ به داسې فکر وکړو چې گويا موږ د نړۍ لپاره څارندويان (پالندويان) Boy Scouts يو او په ټوله لاره کې له هېوادونو سره مرسته کوو.

***یوروګوایي لیکوال ادواردو اګالیانو د امریکا د ښوونځي په اړوند کښلي دي، چې اوس یې دغه ښوونځی د امنیتي همکارۍ لپاره د لوېدیځ همسپیر Hemisphere د انستیتیوت په نوم نومولی دی. نوموړي لیکي چې په متحده ایالاتو کې په پوځي روزنتونونو کې پر بشري حقونو باندې د تېري متخصصین روزي. له دې جوتېږي که چېرې متحده ایالاتو واقعاً د ترهګرو د کمپونو له منځه وړلو سره مینه درلوده، کېدای شول چې دا کار یې دلته ډېر نژدې په خپل کور کې په Fort Benning Georgia کې پیل کړی وای.***

هوکې، موږ د وسپنې په دوران کې ژوند کوو، هلته د ډبرې دوره وه او دلته د وسپنې دوره ده. حکومت وایي چې اراده لري چې د ترهګرو کمپونه وتړي، تر اوسه دلته په متحده ایالاتو کې د امریکا په ښوونځیو کې خلک روزل کېږي چې له ترهګرۍ سره سروکار لري او داسې خلک روزل کېږي چې وروسته به په مرکزي امریکا کې د وژلو ډلو (ټولګیو) ته سازمان ورکړي. که تاسې په امریکا کی د ښوونځیو د فارغ التحصیلانو عکسونه په دېوال ومښلوئ، نو تاسې به د ترهګري درغلیانو (حرامیانو) یوه خونه ووینئ. زه فکر کوم چې د السلوادور د وژنې د ټولي مشر Roberto D, Aubuisson پر ۱۹۸۱ کال په دسمبر کې د السلوادور د ۸۱۱ کسو په وژنو کې برخه اخیستې وه، د فارغ التحصیلو جنرالانو او دیکتاتورانو له جملې څخه وو چې په امریکایي ښوونځیو کې روزل شوي دي. په حقیقت کې هغه لارښودنه چې په امریکایي ښوونځیو کې ورکول کېږي، داسې مشورې ورکوي چې څرنګه او په کومه اندازه د ترهګري اعمال ترسره کړای شي. تاسې پوهېږئ، چې د پانامانیان دیکتاتور Manuel Noriega د امریکا ښوونځي ته تللی و او وروسته د CIA کارکوونکی شو. بیا

سملاسي دوښمن او ترهګر شو او موږ ورسره جګړه پيل کړه چې ويې ونيسو. خو ښايي چې موږ به د دې لپاره چې کيسينجر ونيسو هېڅکله جنګ ونه کړو، متحده ايالات په پرله پسې توګه د نړيوال جنګي جنايت د محکمې له پرانيستل کېدو سره مخالفت کوي. ځکه چې کېدای شي چې د متحده ايالاتو د خلکو، حکومت او پوځي مقاماتو پر ضد استعمال شي. دوی په دې اړوند په ډاګه وايي او په دې اثر حکومت وايي: «هوکې! موږ داسې خلک درلودل چې کېدای شول په جنګي جناياتو باندې تورن شي.» متحده ايالات غواړي چې نور داسې خلک پيدا کړي چې د جنګي جناياتو سبب شوي وي؛ خو يو امريکايي د جنګي جناياتو په عمل سره نه شي تعريف کېدای. په حقيقت کې کسينجر په وروسته وختونو کې يوه داسې طرح وليکله چې په هغه کې راغلي وو، چې د نړيوالې محکمې ايجاد ناوړه مفکوره ده. سمه ده دا په طبيعي ډول ناوړه مفکوره ده ځکه چې دا به لومړني وګړي وي چې د محکمې حضور ته ولاړ وي، کوښښ به کوي چې په لاتينه امريکا کې خپل ملاتړ په وژونکو پوځي ډلو او زندي کوونکو حکومتونو، په سهيل ختيزه اسيا کې د جګړې جنايات او په سهيلي افريقا حکومت کې د اپارتايد تشريح وکړي.

دا به ډېره ښه وای چې د جنګي جناياتو نړيواله محکمه موجوده وای او هلته يې د نړۍ د ټولو هېوادونو تر تعقيب لاندې جنايتکاران نيولي، راوستي او ورسپارلي وای چې د ترهګرۍ په ملاتړ کې ښکېل او تورن وو او يا يې د ترهګرۍ د دسيسو ملاتړ کړی وای، خو د متحده ايالاتو حکومت په ډاګه وايي چې له دې کار سره مينه نه.

# څلورم څپرکی

## د مخالفت اړتیا

***تاسې اوس یوه عامه سندره اورئ: «موږ باید د خپل ولسمشر شا ته ودرېږو.»***

داسې جملې چې له هغو نه یوه هم دا ده چې بوش یې د سپټمبر له یوولسمې وروسته وایي: «یا به له موږ سره یاست او یا به له ترهګرو سره.» یا په بل عبارت وېره اچول. د دې مانا دا ده که تاسې د حکومت ملاتړ نه کوئ نو تاسې د حکومت دوښمنان یاست. دا ټولې خبرې اترې یو ډول رواني وېره اچونه ده چې زما په فکر کېدای شي یوازې په ژوندوني له محاکمې پرته وژنې جوتولې شي. تاسې کولی شئ، ووینئ چې دا یوازې د حکومت له خوا نه بلکې د اکثرو ډله ییزو اطلاعاتي وسایلو له خوا ترسره کېږي.

اندریو سولیوان د New Republic یو ادیتور په متحده ایالاتو کې د «پنځمې ستنې» په باب چې د جګړې ضد فعالیتونو په وسیله جوړ شوی و، بڼه پیدا کوي، ولیکل. د پنځمې ستنې مفکوره د هسپانیې په کورنۍ جګړې پورې اړه لري چې خلکو ته یې ویل چې ستاسو په منځ کې ځینې خاینین موجود دي. دا یوه ډېره خطرناکه خبره ده او د خلکو لپاره ډېره ګواښونکې او ویروونکې ده، په خاص ډول د هغو کسانو لپاره چې ځانونه

آزاد نه احساسوي او له دې وېرې چې که خپله عقیده څرگنده کړي، خاین به وبلل شي. ما ته د دې مفکورې چې «تاسې باید په خپل حکومت باندې انتقاد ونه کړئ او باید د خپل ولسمشر شا ته په یوه لیکه کې ودرېږئ»، مانا دا ده چې دا واقعاً هغه لویې دموکراسۍ ته چې بوش یې ادعا کوي چې د هغې د ساتلو لپاره جگړه کوو، ډېر لوی خطر دی.

د سپټمبر په ۲۹ نېټه الگور د Lowa دموکراتیک گوند سره خبرې وکړې او په ډېره زیاته مینه یې په دې الفاظو تایید کړه چې جورج ډبلیو بوش زما سر قوماندان دی او د نیویارک ټایمز په خبرو کې چې «دموکرات او جمهوري غوښتونکو گوندونو په عذر او ننواتو سره په یو ډول وړاندیز کاوه چې په ټول قوت سره به د ښاغلي بوش ملاتړ وکړي».

کله چې ما دا خبرې واورېدې له ځان سره مې فکر وکړ چې گومان نه کوم چې الگور دې اساسي قانون لوستی وي. اساسي قانون وايي چې جمهور رییس د وسله وال پوځ اعلی سرقوماندان دی خو د هېواد اعلی سرقوماندان نه دی او نه خو زموږ د ټولو قوماندان دی. د الگور خبره د دې بل مثال دی چې گواکې خلک دې په یو لین کې ودرېږي چې خپل د نني ځواک پیاوړی کړي او یو پیاوړی محافظت ایجاد کړي. زه د ډان رادر Dan Rather د CBS د خبرې ملاتړ کوونکي په باب فکر کوم چې نوموړي د څه شي ملاتړ او ساتنه کړې ده؟ هغه د تاسیساتو ساتنه کوي لکه چې یو ساتندوی یې کوي. رادر Rather وروستۍ ننداري ته له داوید لیدرمان David letterman سره ولاړ او ویې ویل: «جورج بوش جمهور رییس دی، نوموړی پرېکړه کوي او تاسې یې پېژنئ، هغه یوازې له ماغوښتنه کوي چې د یوه امریکایي په توگه یې په لیکه کې ودرېږم. همدومره ووایه چېرته. همدارنگه Rather و Larry King Live ته ورغی

او ويې ويل: هره خبره اتره او بحث چې ښايي له ځوان جورج بوش سره وشي يا ښايي ونه شي، د سپټمبر له يوولسمې نه د مخه هغه زموږ اعلی سرقومندان دی، هغه يو مېړه دی. موږ يووالي ته اړه لرو، موږ ثبات او قوام ته اړه لرو. زه د هغه په باب وعظ نه کوم، موږ ټول په دې پوهېږو.»

دا هغه ژبه ده چې ښايي تاسې په يوه متمرکز، واحد ديکتاتور دولت کې اورېدلي وي، نه په دموکراسۍ کې. که چېرې جمهور رييس وايي چې په يو صف کې ودرېږئ، موږ په په لين کې درېږو. د ژورناليزم لومړنی اصل دا دی چې په آزاد غږ سره آزادانه انتقاد وکړې، چې د وګړو نماينده شي او حکومت په سملاسي توګه نه وايي چې «هوکې، موږ يوله بله سره يو». کله چې موږ CNN ولګوو، هر وخت بايد د امريکا بيرغ د تلويزيون پر مخ ونه وينو.

همدارنګه دا هم بايد د امريکا د دود برخه وي، که موږ وغواړو چې له ټولګي نه بهر پښه کېږدو، موږ به وکړای شو چې له ټولګي نه بهر شو. دموکراسي د ولسمشر شا ته صف (ليکه) تړل نه دي او په دې کې سقوط نه کوي. دموکراسي د خلکو لپاره ده چې آزادانه فکر وکړي او په حکومت باندې شکاک و اوسي. شاوخوا وګوري او هڅه وکړي چې پوه شي چې څه تېرېږي. که دوی پوه شي يا څه ووينې چې حکومت هغوی تېرباسي، نو چې څومره کولی شي په رسا غږ دې خپل غږ اوچت کړي، دا ده دموکراسي.

***د The Boston Herald زما په اړوند رپوټ ورکړ: تا په خپل بيان کې د Newton North High School زده کوونکي هڅولي او په***

***افغانستان باندې د متحده ایالاتو د بمباریو په باب دې یو لړ پوښتنې راپورته کړې دي. ریپوټ وایي چې «والدین پوښتي چې دا د Zinn د عقایدو د منلو لپاره د ماشومانو آزاد پرېښودل دي» او د یو پلار له خولې چې ماشومان یې په مینه او شوق ښوونځي ته نه ځي داسې وایي: «کوم کار چې دې سړي کړی، د باور وړ نه دی... دا وېرونکی دی، دا ځیزونه د ښوونځي ټولو اوربېدونکو ته وویل شول چې د ۱۳ او ۱۷ کلونو ماشومان دي او په ښه او بد نه پوهېږي.»***

البته دا چې ماځه ویلي و، د هیرالد راپورتر غلطه کړې وه، نوموړي د خپلې مقالې په لومړي پراګراف کې ویلي دي چې ګویا ما په افغانستان باندې د متحده ایالاتو پوځي یرغل د سپټمبر د یوولسمې نېټې د ترهګرۍ له یرغل سره معادل بللی دی.» آیا دا د یوې کیسې د پیل ښه بېه ده چې د یو ډېر پریکنده بیان ناسم نقل قول د هغه چا له خوا چې تاسې یې په باب لیکئ، پر افغانستان د متحده ایالاتو یرغل، د سپټمبر له یوولسمې نېټې سره یو شان بلل؟ نه البته ما دا دوه شیان یو ډول نه دي بللي. ما دا ویلي وو چې په افغانستان باندې د متحده ایلاتو پوځي حملې د ترهګرۍ په وړاندې د ځواب ویلو مناسبه لاره نه ده، ځکه چې د بېوزلو او بېګناه خلکو په وړاندې تېری دی او د افغانستان د عامو وګړو په وړاندې تېری د ترهګرۍ په وړاندې د ځواب اخلاقي لاره نه ده.

دا کېدونې ده چې دواړه پېښې سره پرتله شي او وویل شي چې د نړیوالې سوداګرۍ په مرکز باندې حمله د ترهګرۍ یو غیر اخلاقي عمل و. په افغانستان کې د ولسي خلکو وژنه او له خپلو کورونو څخه د په زرګونو خلکو وتل او بې ځایه کېدل، پرته له دې چې هڅه وشي چې دواړه سره یوشان وبلل شي، هم یو غیراخلاقي عمل و. تاسې په واقعي توګه نه شئ

کولی چې دا دواړه وحشیانه اعمال یوشان وبولئ، خو کولی شئ، چې خوا په خوا یې پرتله کړئ او داسې وړاندېز وکړئ، چې دا دواړه شیطانان دي او یوه پېښه د بلې د جبران لپاره نه ده.

څومره چې د نیوتن د دغو زده کوونکو په والدینو پورې اړه لري، هغوی لا تر اوسه پورې عالي زده کړې نه کوي، هغوی چې وايي، «دا د باور وړ نه ده. څه چې ما ویلي دي هغه په زړه پورې دي. زما اثر چې د متحده ایالاتو د وګړو تاریخ د ټول هېواد په عالي لیسو کې هغه ځوانانو ته چې عمرونه یې له ۱۳ نه تر ۱۷ پورې دي درس ورکول کېږي.» زه پخپله د هغوی د والدینو په څېر د دغه زده کړو د څرنګوالي په باب حیران یم. آیا واقعاً هغوی فکر کوي چې دغه ځوانان چې په لېسو کې زده کړه کوي، په دې عمر کې دومره زیات هوښیار او ځیرکه نه دي چې داسې بحثونو ته له ټولو اړخونو غوږ ونیسي او خپل مغز په کار واچوي او فکر وکړي؟ دا د ځوانانو بې مانا کول دي او په ډاډ سره د هغوی د لیدتوګې او نظر بې لاري کول، په خاص ډول د ښوونې او روزنې په باب د هغوی بې لارې کول دي. ښوونه او روزنه باید د ځوانانو لپاره په بېلابېلو لارو او لیدتوګو کې شامله وي. اجازه ورکړئ، چې دوی هغه څه چې دوی یې غواړي په خپله پرېکړې وکړي او پرې باور ولري. په زړه پورې ده چې وګورو له هغه وخته راهیسې چې دا مقاله چاپ شوې، څه پېښ شول. یوه سیمهییزه ورځپاڼه د Newton Tab په نوم چې په څلورو مخونو کې یې زما د خبر و په اړوند لیکونه او یوه سرمقاله چاپ کړه، د زده کوونکو او والدینو د لیکونو زیاتره برخه ملاتړ کوونکې وه. ما ته په لسګونو تلیفونونه راغلل چې د هغو په ترڅ کې یې خپل ملاتړ وښوده. ما ته د اوو بېلابېلو ښوونځیو له خوا بلنه راکړل شوه، له ما یې غوښتي وو چې وینا وکړم. په داسې حال

کې چې مطبوعات د خلکو قهر تر پام لاندې نیسي، څوک چې نه غواړي چې د جنګ ضد خبرې واوري، دلته ډېر داسې د جګړې ضد احساس شته چې رپوټ یې نه دی ورکړ شوی.

***په کینې لوریو کې پر تاسې او نورو کسانو لکه Noam Chomsky او Sontag Susan باندې د دې لپاره انتقاد کوي چې تاسې د ترهګرۍ د ریښو په باب پوښتنې راولاړې کړې دي او د متحده ایالاتو د بهرنۍ سیاست په وړاندې مو اواز پورته کړی دی.***

څرګنده ده چې د امریکا د بهرني سیاست په اړوند یو ډول وېره له دې امله په خپرېدو ده چې که هڅه وکړي چې له خلکو سره د سپټمبر د یوولسمې نېټې د پېښو په باب اعتراض وکړئ. که تاسې ووایې: «اجازه راکړئ چې د ترهګرۍ ریښې وازمایو، وګورئ چې د دې ټولو شا ته څه دي؟ هیله ده پام وکړئ، چې هر څه چې د دې شا ته ترسره کېږي او هر څه چې کېږي یوازې د ترهګرۍ د تعصب، سخت دریځۍ او غیر عقلانیتوب سبب دی او د دې ټولو ریښې د امریکا په بهرني سیاست کې دي.» کله چې تاسې د دې مسایلو په باب خبرې اترې پیل کړئ، سم د واره به ځینې اډیټوران، ژورنالېستان او سیاستپوهان ووایي: «ته د ترهګرۍ یرغل توجیه کوې.» ډېر ښه، په دې خبرو اترو به تیره کېږدو. موږ غواړو چې یوازې د دې مسایلو په اړوند خبرې وکړو. خو موږ نه غواړو چې د هغه نورو په باب وګړېږو. کله چې خلک یوه اجندا تیاره کړي او وایي: «موږ کولی شو یوازې په دې اړوند خبرې وکړو.» دوی په ډېره جدي توګه زموږ د بیان آزادي محدودوي، همدارنګه دوی یو خطرناک حالت

رامنځته کوي چې په هغه کې نوره دموکراسي نه وي او نور په کې د عقایدو او نظریاتو د سیالۍ آزاد مارکیټ او بازار موجود نه دی.

د سپټمبر له یوولسمې وروسته موږ ولیدل چې یوه داسې فضا ایجاد شوه چې د امریکا په بهرني سیاست باندې انتقاد کول ستونزمن و. موږ اړ یو چې ووایو، زه پوهېږم چې هغه څه چې پېښ شول ډېر ویروونکي او ډېر سخت وو. موږ اړ وو چې خپله ټوله وسه په کار واچوو چې د قربانیانو له کورنیو سره مرسته وکړو، موږ اړ یو هغه څه وکړو چې وکولی شو چې د نورو راتلونکو حملو مخه ونیسو. موږ باید په ډېر غور امنیت تأمین کړو.

خو راځئ چې تر دې وړاندې لاړ شو او وګورو چې په اوږده موده کې څه کېدای شي چې دا ستونزې حل شي.

په هر حال، زه فکر کوم چې موږ باید د داسې ګواښونو په وړاندې چې وایي باید چوپ پاتې شو، په حکومت نیوکې ونه کړو، بهرنی سیاست مطرح نه کړو، په وړاندې ودرېږو او مطرح یې کړو. یو شی چې مقامات پر دې برلاسي کوي چې خلک تېرباسي، دا دي چې خلک د غفلت په حال کې وساتي او د جنګ د تېر تاریخ په باب فکر ونه کړي. د تېري او تجاوز د تاریخ، د خلکو د تېرایستلو لپاره د حکومت د تاریخ، د رسنۍ وسایلو د پروپاګندونو او د دروغو د تاریخ په اړوند فکر ونه کړي. که ډېر خلک د حکومت د تېرایستلو او غولولو د تاریخ په باب په یو څه پوهېدلی یا د هغو دروغو په باب چې موږ به یې د مکسیکو په جنګ یا داسې دروغ چې موږ به یې د فلپاین په جنګ ورګډولو، یا به یې د هسپانیې او امریکې په جنګ ورګډولو یا داسې دروغ چې موږ ته به یې د دویمې نړیوالې جګړې په موقع ویلي، دا دروغ موږ ته په بیا بیا سره د ویتنام د جګړې په

وخت ویل شوي وو. هغوی به د خلیج د جګړې د شیطاني دروغو په اړوند پوښتنه کړې وای چې د حکومت او ډله ییزو وسایلو څخه یې د دغه جنګ د توجیه لپاره څه اورېدل.

***تاسې په پرله پسې توګه د ژورنالېست .I. F. Stone وینا رانقل کړې ده.***

F. Stone زموږ د دوران یو ستر ژورنالېست و. نوموړی به د ژورنالیزم ښوونځی ته بلل کېده، چې هغو زده کوونکو ته چې راپورتري یې زده کوله ویناو کړي. هغه به ویل: «پر ټولو شیانو سربېره چې زه یې نن تاسو ته وایم چې باید ژورنالېست اوسئ، ټول باید دوه څیزونه یا دوه کلمې په یاد ولرئ: حکومت دروغ وایي.» دا ډېره مهمه ده چې پرې وپوهیږئ. له دې پرته به موږ هغه څه چې مقامات یې وایې، د هغو قربانیان وو.

***په یو شمېر د رسونو کې چې له تا سره به پرې خبرې کېدې، خلکو به له تا نه پوښتل چې دا مالومات چې ته یې وړاندې کوې له کومه کړل؟ ته ورته څه وایې؟***

که یو زده‌کوونکی له ما پوښتنه وکړي، زه به ورته ووایم چې ټولګی پرېږده او کتابتون ته ولاړ شه، ټولګی پرېږده او کتاب‌پلورنځي ته ولاړ شه. د ځان لپاره یې ولوله، د خپلې پلټنې لپاره یې ولوله. موږ اړ یو چې خپله احاطه پراخه کړو. د اوس په اړوند د هغه څه په باب چې د سپټمبر په ۱۱ پېښ شول او په دې اړوند فکر وکړو چې موږ څرنګه په نړۍ کې له تېري او

تجاوز سره هم‌غاړي کېدای شو، څرنګه کولی شو چې له متعصبې ډلی او حکومتي ترهګرۍ سره په نړۍ کې چلند وکړو. دا ډېره مهمه ده، هېڅکله د میدیا له عقایدو څخه هم سترګې مه پټوئ. که تاسې نیویارک ټایمز په غور ولولئ، په خاص ډول که د هغه د نني مخونه وګورئ، تاسې به داسې رپوټونه ولولئ، چې زیاتره امریکایان به خپه کړي او ان تر دې چې د ټایمز زیاتره لوستونکي به خپه کړي، ان تر دې چې زیاتره قراردادي ځایونه لکه ټایمز، نیوزویک، وال ستریت ژورنال او بزنس ویک هم اکثره وختونه انتقادي رپوټونه لري. زما په یاد دي چې د سپټمبر د ۱۱ وروسته ډېر ژر ما د نیوز ویک په مجله کې یوه مقاله ولوسته چې عنوان یې و: «ولې دوی له موږ کرکه لري؟» واقعاً چې دا په دې ډول ترتیب شوی وه چې د امریکا کومه پالیسي په خاصه توګه په منځني ختیځ کې د امریکا د متحده ایالاتو پر ضد د زیات قهر د راپیدا کېدو سبب شوی دی. په دې هکله موږ دوی بدیلی خپرونی لکه

Dollaars and Sense او Nation in this Time Zmagazine Progressive لرو. Dollars and Sense د امریکا د اقتصاد په اړوند داسې مالومات درلودل چې تاسې به یې بل چېرې ترلاسه نه کړئ. په واشنګتن کې د دفاعي مالوماتو مرکز د وسلو د سیالی پوځیګرۍ، د بالستیک ضد میزایلو ګواښنه او هستوي وسلو د خپرېدو په اړوند مالومات لري چې تاسې به یې بل هیچېرې ترلاسه نه کړئ. د نړیوالې بخښنې سازمان د بشري حقونو څخه د سر غړاوي په باب پرته له دې چې د متحده ایالاتو د پلویانو له خوا شوی وي او یا یې د دښمنانو له خوا شوي، خپاره کړي وي چې ډېر مهم مالومات لري. همدارنګه زه فکر کوم چې دا مهمه ده چې د کېن لاس ځینې کوچنۍ خپرونې ولوستل شي چې ځینې مهم

مالومات او شنني لري کومې چې بل هېڅ چېرته نه شي ترلاسه کېدای. International Socialist Review يوه له دغو څخه ده.

همدارنګه زه خلک هڅوم چې د Noam Chomsky اثر او نور آثار لکه د احمد رشيد د طالبانو په نوم اثر چې د افغانستان په باب ژور مالومات لري، ولولي. يا هغه کتابونه چې د تېرو شلو دېرشو کالو په دوران کې د امريکا بهرني سياست په باب پراخ نظر ورکوي لکه: د Stephen Shalom او د Imperial Alibis اثر وګوري. همدارنګه انترنت هم د اکثرو مالوماتو ډېره ښه سرچينه ده چې په مطبوعاتي نظرياتو او عقايدو کې نه راڅرګندېږي.

***ژورنالېست جان ريد چې د روس د انقلاب په باب يې د «لس ورځې چې نړۍ يې ولړزوله» او د لومړۍ نړيوالې جګړې پر ضد يې تنظيم کړ. نوموړي په ۱۹۱۷ کال يوه مقاله وليکله، داسې برېښي چې دغه مقاله همدا نن ليکل شوې ده. که چېرې تاسې دا عبارت چې د «اروپا شخړه» د افغانستان په عبارت بدله کړئ، نوموړي کښلي وو، جنګ يعنې يو د لېونتوب ناوړه يرغل، د رښتيا ويونکو پانسي کول، د هنرمندانو پانسي کول، د هنرمندانو زندي کول، د سمونونو (اصلاحاتو)، بدلونونو او د ټولنيزو قوتونو کار کول، لوری بدلول او ځنګ ته کول. لا تر مخه په امريکا کې هغه اتباع چې په اروپايي اخ و ډب کې د هغو د هېواد د ورګډېدلو سره مخالف وو، خاينين بلل او هغوی چې د بيان د آزادۍ د حقونو د کمښت پر ضد اعتصاب کوي، دنيا و له حقوقو څخه بې برخې کيدل، د خطرناکو لېونيانو په نوم يادېږي.***

موږ په دې هېواد کې د سخت مخالفت يو لړغونى دود لرو چې واقعاً په داسې شېبو کې چې مخالفت ته سخته اړتيا وي. په رښتيا کله چې آزادو خبرو کولو ته اړتيا لري، کله چې په پوځي قوتونو کې د ځوانانو د ژوند د هغو خلکو ژوند چې د سمندرونو اخوا دي او کېداى شي زموږ د پوځي عملياتو قربانيان شي او له خطر سره مخ وي نو په دغه وخت کې دوى تاسې ته وايي چې چوپ اوسئ. په حقيقت کې کله چې ته آزادو خبرو او بيان ته اړه لرې او ته د بې ارزښته مسايلو په اړوند ازادې خبرې لرې، نه يوازې د مرگ او ژوند د مسايلو په اړوند، نو دې ته وايې دموکراسي. نه، موږ يې نه شو منلى.

دا يوه زړه کيسه ده. په بهرني سياست کې تشنج، جنگ او جگړې ته نژدې شرايط يا سره جگړه زياتره وخت په آزادو خبرو او عامو آزاديو باندې له لېونتوب نه ډک ډار ايجادوي. دا په دې پورې اړه لري چې حالت څومره جدي او مهم دي. دوى داسې فضا ايجاد کړه چې په هغه کې حکومت ته د دې امکان ورکوي چې ولسي يا عامه آزادي په رسمي توگه محدوده کړي. ښايي ان نور هم اهميت ولري چې د اوسېدونکو ترمنځ داسې ناوړه حالت منځ ته راوړي چې د مخالفو آوازونو د زغم وس ونه لري.

کله چې حکومت په دې پورې محدود وي، چې څه کولى شي چې عامې آزادي کنترول کړي او کله چې نفوس په لويه کورنۍ کچه کې د حکومت د بنديزونو له افکارو سره مخامخ وي، نو د دوښمنو قوتونو له خوا په ټولنه کې هر مخالف محاصره کېږي. دا يو وار بيا د ۱۷۸۹ کال د Alien او Sedition ترون ته ورگرځي، کله چې متحده ايالات له فرانسې سره په سره جگړه کې ښکېل و، د ايرلېند د انقلابيونو په هکله يو ډول له لېونتوبه

ډکه آوازه خپره شوه، ځکه چې ایرلیند چې د اوږدې مودې لپاره د انګلند پر ضد و بیا پاڅون کاوه، ایرلیندی کډوال دلته راغلي وو او په ټول اتلانتیک کې یې په خطرناک ډول ډېر انقلابي افکار خپرول. همدارنګه موږ په خپل هېواد کې فرانسوي انقلابیون درلودل. نو په دې ډول حالاتو کې کانګرس د جان ادم د موافقې له مخې چې په دې وروستیو وختونو کې یې د خپلې بیوګرافي په کتاب کې چې په لوړه کچه وپلورل شو، د پردیو خلکو په اړوند خبرې کوي. هغه وایې پرته له دې چې هغه کسانو ته چې په حکومت انتقاد کوي، پولیسو ته جواز ورکول شوی چې دغه خلک بندیان کړي. پرته له هر ډول قانوني پروسې او محاکمې یې واستوي او پولیسو ته اجازه ورکړل شوې وه، چې هر څوک چې په حکومت انتقاد کوي، بندي یې کړي. یو لږ شمېر خلک بندیان شول، خو نور ډېر زیات وېرېدل چې څه ووایي.

د لومړۍ نړیوالې جګړې پر مهال کله چې جان رید دا دلایل وړاندې کړل، نو هغه مهال د مخالفینو پر ضد سختو تعذیراتو او بندیزونو ته ځانګړې اړتیا وه، خو کله چې متحده ایالات په لومړۍ نړیواله جګړه کې ښکېل شول، دا وخت په هېواد کې دوه لویې ځواکمنې ټولنیزې ډلې وي، چې له جګړې سره یې مخالفت کاوه او د میلیونونو امریکایانو ملاتړ یې درلود. یو یې سوسیالست ګوند و، د سوسیالستانو اخبار نژدې د هېواد دوه میلیونه خلکو لوست، سوسیالستان په ښاري شورا کې د قانون جوړوونکو په توګه او ان د متحده ایالاتو کانګرس ته غوره شوي وو. دویمه ډله د صنعتي کارګرانو هغه وه چې د WW I په نوم یادېده.

WW I او سوسیالست ګوند په متحده ایالاتو کې ډېر پیاوړې ټولنیز ځواکونه وو. حکومت احساس وکړ چې دوی باید موقوف کړي چې

جنګ پر مخ بوځي. د دې کار لپاره حکومت بې‌سارې او زیاتې هڅې وکړې. کله چې متحده ایالات په جګړه و، ګډی شو. کانګرس د جاسوسي ماده تصویب کړه. په حقیقت کې د جاسوسی (څارګرې) دغه حقوقي مادې له څارګری سره ډېرې لږې اړیکې درلودې. هر هغه چا چې به د جنګ لپاره خپل نوم نه ورکاوه هغه ګناهکار بلل کېده او زندان ته استول کیده.» دا د هغه قانون ژبه وه چې مانا یې دا ده چې که د جنګ پر ضد خبرې وکړې. تاسې په څرګنده د متحده ایالاتو د وسله والو قوتونو لپاره د نویو ګمارلو په برخه کې ناغېړي او د هغوی د مخنیوي سبب کېږي، نو کېدای شي تر تعقیب لاندې راشي.

Sedition تړون یا لایحه چې دEspionage له لایحې سره په کې بدلون راغی، ان لږ نور یې هم په کې جدیت راوستی و. په حقیقت کې د دغو لوایحو په اساس دوه زره کسه تر تعقیب لاندې وو او نژدې یو زر کسه زندان ته ولاړل. په هغو کې یو سړی چې له لومړۍ نړیوالې جګړې سره د مخالفت په وجه زنداني شوی و، Eugene Debs نومېده. نوموړی د سوسیالستانو یو له سترو فعالینو او ویندویانو څخه و. د The Masses یاولسونه په نوم مجله بنده شوه او د دې لپاره سترې تبلیغاتي هڅې پیل شوې چې امریکایان وهڅوي چې د هغوی په منځ کې ورانکاري او خاینان ومومي.

د اساسي قانون لومړی بدلون وایي چې کانګرس باید دا قانون جوړ نه کړي. د بیان د آزادیو لنډول یا د مطبوعاتو محدودول یا د خلکو دا حق چې په سوله ییزه توګه غونډې وکړي او حکومت ته داحتجاجونو چمتو او وړاندېزونه وکړي. «آیا دا کار د دې خنډیا مانع شو چې ستره محکمه دې دیبس Debs او د جګړې ضد مشران زنداني نه کړي؟ نه هغوی

پرېکړه کړې وه چې ښايې داسې وختونه وي چې تاسې نه شئ کولی چې د بيان آزاديو ته اجازه ورکړئ، ځکه چې په دې برخه کې «څرګند او حاضر خطر موجود دی.»

کله چې دوی دا پرېکړه کوله، داسې کوم څرګند او موجود خطر چې ستره محکمه ورسره مخامخ وه، نه و؟ خلکو د دغه مسودې پر ضد د نيويارک پر سرکونو تبليغاتي پاڼې وېشلې. په واقعيت کې د اروپايي جګړو وحشت ته زموږ د ځوانانو استولو زموږ ملت ته څرګند او موجود خطر ايجاد کړ. دا په زړه پورې ده. دلته ولسمشر د چا خبره يو پېژندل شوی ليبرال دی، په سياسي علومو کې د PHD خاوند او د تاريخ مولف و.

د پرينستون د پوهنتون پخوانی رييس و. نوموړي دا مواد تصويب کړل. (دا بايد ټول يو برابر او مساوی وبولي. هغوی چې ډېری لوړې زده کړې لري تاسې به يې په رياست او مشرتابه کې ووينئ. ډېر هوښيار شخص به ډېر اخلاقي شخص وي، نه ويلسن او تئودور روزولت، چې عالم او مؤلف و او د ټولو د تساوي په برخه کی يې غلطي وکړه.)

د لومړۍ نړيوالې جګړې پر مهال د بهرنيو بې باوري د جنګ تر پايه د پالمر تر  حملو پورې وغځېده. په دغه باب به هم ښايي ووايي چې د ترهګرۍ د عمل لمسون و. په دې برخه کې د يو دوه بمونو اېښودل ښودل کېږي چې د A. Mitchell Palmer لوی څارنوال لپاره اېښودل شوي وو.

په داسې حال کې حکومت نه پوهېده چې بمونه چا اېښي وو، دا څه مسأله نه وه. دا هغه څه وو چې په داسې حالاتو کی پېښېږي. ځينې داسې شيان واقع کېږي خو تاسې نه پوهېږئ چې چا وکړل، خو تاسې له وخت نه ګټه واخلئ چې د راډيکالو خلکو او راديکالو سازمانونو پر ضد عمل وکړي،

چې دا واقعاً د پالمر د حملو په ترڅ کې پېښ شول. د متحده ایالاتو حکومت په زرګونه غیر متبوع کسان تبعید کړل. په دوستانه غونډو کې او د ټولنیزو مرکزونو په کوم ځای کې یې چې کډوال راټولېدل حملې وکړې او دا کسان یې بندیان کړل. په یوه وخت کې دوی په سلګونو خلک یو له بل سره لاس تړلي د بوستون په سړکونو کې روان کړي وو. وروسته یې په بېړیو کې کښېنول او دیپورت یې کړل. د دغو استوونکو په منځ کې دوه تنه ایما ګولډمان او الګزاندر بیرتهمان په نومونو مشهور انارشستان هم وو.

زما په فکر د مرګ د محکومېدو ډېر مشهور کیسونه د ایټالوی انارشیست Bartdomeo vanzetti Nicola Sacco و، چې په ۱۹۲۱ کال کې پیل شو. له جنګ نه څو کاله وروسته بیا هم د جنګ د دوران له لیونتوب نه د ډک ډار پورې اړوند وبلل شو. د لومړی نړیوالې جګړې، هېوادپالنه لا تر اوسه یو فکتور دی. په حقیقت کې په هغه وخت کې ورځپاڼې له هغو رپوټونو څخه چې د سربازانو د مړو او جسدونو په باب چې له اروپا نه راوړل کېدل، ډکې وې او د Sacco، Jurors او Vanzeti کیس منصفه هیأت ته اجازه ورکړل شوه چې اخبارونه ولولي. حقیقت دا دی چې Sacco او Vanzetti انارشیستان او بهرنیان وو، زما په فکر د هغوی د محاکمې او اعدام په باب یې زیات اغېز درلوده.

***فرید دوګلاس په خپله وینا کې چې د جولای څلورمه نېټه د توریوټیکو لپاره څه مانا لري، د مریبتوب د له منځه وړلو د پلویانو مشر د اختلاف په باره کې دا شان خبرې کوي:***

***«ډېره آسانه ده چې وویل شي چې امریکا په حقه وه او انګلستان په خطا و. هر څوک کولی شي دا خبرې وکړي، نامرد له شریف، زړور څخه لړ کولی شي په شوخۍ سره د انګلستان په استبداد باندې د امریکا د مستعمراتو په وړاندې یرغل وکړي. دا ډول چلند د ورځې مود دی، خو داسې یو وخت هم و چې د انګلستان ترټنه د مستعمرو د دعوی په ګټه، د شجاعت آزموینه ګڼل کېده. هغوی چې داسې کول، په خپلو وختونو کې شریر، محرکین، یاغیان او خطرناک خلک ګڼل کېدل. د ناحق په وړاندې د حق پلوي وو او د زورور په وړاندې د کمزوري او د ظالم په وړاندې د مظلوم! په دې ځای کې ده چې هغه څه چې مالومېږي له بله هر وخته زموږ په دوران کې کرغېړن دي. د آزادۍ پر داعیه بنایي د هغو له خوا یرغل وشي چې نن ستاسو د اسلافو په مرګ ویاړي.»***

دوګلاس په دې اړوند خبرې کوي چې دا څومره مود او تقلید دی چې له چارواکو سره یو ځای لاړ شو او ښایي چې څومره مخالفین به مخالفت پای ته ورسوي. کله چې امریکایي انقلابیونو د انګلستان پر ضد پاڅون وکړ، ډېر ژر د ستاتیسکو (نه خوځون) د حالت ساتونکي شول، هغوی د مریپانو ساتونکي دي او پخپله د چا خبره د وړ کسانو په توګه حاکمیت کوي. موږ په متحده ایالاتو کې، له هغه وخته چې ښکېلاګر د انګلستان پر ضد په عمومي نافرمانۍ کې ښکېل شول، د انقلابي تاریخ له اوږدې لارې راغلي یو او د آزادۍ په اعلامیه کې د داسې اصل پرېکړه وشوه چې حکومتونه هغه په مصنوعي توګه هستوي چې که چېرې د ژوند لپاره د برابر حق آزادۍ او د خوښۍ راوستلو ساتنه ونه شي کړای نو باید بدل شي او یا له منځه یوووړل شي.»

د آزادۍ له جنګ نه یوازې څو کاله وروسته نوی امریکایي حکومت په انقلابي ضد قوت بدل شو. په نتیجه کې قانون پخپله د داسې یوې فضا لپاره چوکاټ وګرځېد چې په هغه کې د پاڅونکوونکو لپاره وېره وه. دا شي، د لوېدیځې ماساچوست یاد Shays یاغیان، بنسټ اېښودونکو پلرونو Founding Father ته د ګواښ د خبرداری غږ پورته کړ. همدارنګه په نورو هېوادونو کې چې آزادي یې غوښته لکه څنګه چې امریکایي مستعمرو غوښته، ورته په ډاګه شوه چې نور نو د آزادۍ لپاره د جنګونو هېڅ زغم نه شي کېدای، څکه چې موږ اوس لوبه وړې ده، همدارنګه د هایتي تورپوټکي پاڅونکوونکي د فرانسې د حاکمیت په وړاندې په بري سره جنګېدل او لوبه یې وړله. هغوی د توماس جفرسون (چې د خپلواکۍ اعلامیه یې کښلې وه) د اداري له خوا له مخالفت سره مخامخ شول. متحده ایالاتو د هایتي د جمهوریت په رسمیت پېژندل د نیمې پیړۍ لپاره وغندل. له کورنۍ جګړې څخه د مخه لسیزو کې چې دا وخت د فریدریک دوګلاس دوران و، هغه کسان چې د عقایدو له مخې بدلون غوښتونکي بلل کېدل، ژوند یې له خطر سره مخامخ و او کله چې به یې له اسارت څخه د مرییانو په تېښته کې مرسته کوله نو د تور تعقیب لاندې به راتلل.

د فرید دوګلاس اخطارونه، چې سیاسي مشران ویناوې کوي او د خپلو پلرونو او اسلافو توصیف کوي، د امریکا د خلکو آزادي به خفه کړي، نن د افغانستان د جنګ پر مهال راڅرګندېږي، هغه کسان به نور هم په ډاګه او وپېژندل شي چې په آزادۍ باور او عقیده لري او زموږ د آزادیو د له منځه وړلو په وړاندې مقاومت کوي.

***جمهور رییس بوش د ۲۰۰۱ کال د نومبر په ۱۳ نېټه یو اجرائیوی حکم لاسلیک کړ چې د شکمنو ترهګرو د څارنې په باب نوې پوځې محکمې ته واک ورکوي. نوموړي وویل، هغه جګړه کوله «ډېرو شریرو شیطان ډوله خلکو سره یې جګړه کوله، نو په دې اساس زه باید دا ډول یو فوق العاده واک ولرم.» د دې حکم له مخې په محکمه چې په قانوني لحاظ که ان له افسرانو یو پر درېیم موافق نه وي، کېدای شي تورن شخص مقصر وګڼل شي او پانسي شي، پرته له دې چې په ملکي محاکمو کې د هغه په اړوند بیا ځلي غور وشي.»***

موږ هر وخت پوځي محاکمې لرو چې پوځي کسان پکې محاکمه کړو. خو د ولسي خلکو لپاره د پوځي محاکمې مفکوره څه نوې ده، او دا واقعاً چې ډېره زیاته خطرناکه مفکوره ده. دا په یو ډول سره خلک له خپل قانوني حق څخه بې برخې کول دي. ان تر دې چې غیرمتبوع کسان هم باید قانوني حقوق ولري، خو کله چې تاسې خلک د پوځي محکمې مخې ته حاضر کړئ، دغه حقوق له منځه لاړ شي.

د بوش اجرائیوی حکم د پټو محاکمو چارې راپېژني. دا هغه څه دي چې په پوځي دیکتاتوری کې پېښېږي چې موږ یې وحشت بولو. خو دلته موږ دې ته تیاری نیسو چې پټې محاکمې له پټو شواهدو سره رامنځته کړو چې په هغو کې، منځګړو یا قضاوت کوونکو ته د برخې ورکولو په باب هېڅ موافقه نه ده غوښتل شوې. په واقعیت سره دا هغه حالت دی چې امریکایان باید په لوړ اواز احتجاج وکړي، خو دلته بیا هغه اتموسفیر چې د سپټمبر په یوولسمه نېټه ایجاد شوی، په ډېر قوت سره د بوش د ادارې له خوا په میدیا کې په شرمېدلې توګه جوتېږي، دغه اداره کولی شي ووایي چې دوی غواړي چې خلک پوځي محاکمو ته راولي. د دې عمل پر ضد

يو لړ اوازونه راپورته شول خو شمېر يې ډېر لږ وو. په مطبوعاتو کې يوازې يوه اندازه اوازونه د دې پر ضد راپورته شول. ما نن سهار د ورځپاڼې پر مخ وليدل چې: يا

Kerry Kennedy Cuomo د خپل پلار Robert Kennedy د خاطراتو د ياد په مناسبت هلته ورغلي وه، جورج بوش هم هلته حاضرېده - بوش او نورو د Robert Kennedy درناوی کاوه او له هغه وروسته د مشرتابه دغه ځای د عدالت د ځانګې په نوم يادېده. تاسې پوهېږي، چې په واشنګټن کې به منافقت او دوه مخې هېڅکله له منځه لاړه نه شي. (Kerry Kennedy Cuomo) راپورترانو ته وويل: «دا نوی يرغل چې په ملکي آزاديو ترسره کېږي غندم، دا د هغې ډېره زړورتيا وه، خو زيات اوازونه هېڅ راپورته نه شول.»

***همدارنګه William Safire چې موږ ډېر لږ ورسره موافق ياستو، يو ستون ليکلی و چې پوځي محکمه يې په کې (اورويليان Onwelian) بللی. «اورويليان دلته د يو ماخذ په توګه راغلی دی او د صفت په توګه استعمال شوی دی چې مطلب ترې جورج اورويل (انګليسی ليکوال ۱۹۰۳ – ۱۹۵۰) د ليکنو په تېره د ژوبڼ نومي کتاب ته اشاره وی: ژباړن»***

هغه وايي چې د بوش بې قانونه (غيرقانوني) محکمه کولای شي چې د ملي امنيت په ذکر کولو سره شواهد پټ کړي او خپل اصول جوړ کړي. غيرمتبوع کسان د داسې مرجع سره مخ دی چې اوس دغه مرجع هم پخپله

پلټونکې، هم مستنطق، هم قاضي هم منځګړی (منصفه هیئت) او هم د زندان ساتونکې یا پانسي کوونکې ده.

د اورویلیان د اند پر اساس د بوش دا حکم له شوروي دولت ناوړه «بشپړې او عادلانه محکمې» سره ورته دی.

ګومان کوم چې د یو ژورنالیست په توګه د سافایر مناسب رول چې په دغه شیبه کې ژوندی راغی او په دغه شیبه کې روښانه و بریښیده.

***د سپتمبر له یوولسمې څخه وروسته جمهور بوش یو بل اجرائیوی حکم لاسلیک کړ. زه دا هیله لرم چې د یو تاریخ پوه په توګه دا ستاسې لپاره ځانګړې په زړه پورې والی ولري. هغه (جمهور رییس بوش) خلکو ته نوره هم سخته کړه، چې د جمهوري ریاست اسنادو ته لاسبری ولري. د نیویارک ټایمز په قول د نومبر د لومړۍ نېټې د حکم په اساس برحال جمهور رییس دا واک لري چې د پخواني جمهور رییس اسناد پټ وساتي، ان که چېرې پخوانی ولسمشر وغواړي چې هغه اسناد عامو خلکو ته څرګند کړي.***

د مالوماتو د آزادۍ لایحه یا مقرره یو د یادونې وړ پرمختګ دی، چې په ۱۹٦۰ کلونو کې پاس او نافذه شوه. دا د پوهانو او اوسېدونکو یو ستر او ګټور کار و، د هغو متبوعو وګړ لپاره چې غواړي د حکومت او جمهور رییس د کړنو په باب نوره پوهه او مالومات تر لاسه کړي. دا د امریکا د خلکو لپاره ډېره لارښوونکې وه چې وپوهېږي زموږ د جمهور رییس لپاره څه انګېزه وه چې داسې پرېکړې یې کړې دي؟ له همدی کبله بوش په څرګنده توګه هڅه کوي چې خلک د حکومت د ثبت شویو مالوماتو له

لاسته راوړلو څخه منع او د هغو مخنیوی وکړي. دا ما ته ډېر ځله ستالینیزم راتداعي کوي، واقعاً تاسې تاریخ پاکوي، تاسې کتابونه تړئ. ستالین نه غوښتل چې د روسیې خلک په دې پوه شي چې چا د روسیې په انقلاب کې برخه اخیستي وه، ځکه چې هغه د روسیې د انقلاب مشران وژلي وو. په دې ډول زه فکر نه کوم چې بوش نه غواړي چې د امریکا خلک په هغو ټولو انګېزو پوه شي کوم چې د هغو شا ته د امریکا جمهور رییسانو پرېکړې کړې وې. ښایي نوموړي به دا کار د حقایقو د څرګندېدلو له مخې منلې وي چې د خلکو پام ورته راواوړي. په وروستیو وختونو کې د لوړپوړو کسانو د عقایدو د رابرسېره کېدو څخه لکه: Lyndon Johson -او John F. Kenneddy -Richard Nixon- څخه موږ ته څرګنده شوه، چې په حکومت باندې چې د سپېڅلو انګېزو په اساس عمل کوي څومره لږ باور کولی شو. کنیدی غوښتل چې پرېکړه وکړي د دې لپاره چې د ۱۹۹۴ کال په ټاکنو کې چانس ولري چې آیا عسکر به له ویتنام څخه وباسي او که نه؟ جانسن هم ظالمانه پرېکړه وکړه چې متحده ایالات به د خپل سیاسي راتلونکي لپاره د ویتنام جنګ ته شدت ورکړي.

جانسن، ریچارد رسل ته چې د جورجیا د ایالت ډېر محافظه کار سناتور وو او د ویتنام د جنګ په وړاندې یې جانسن ته خبرداری ورکړی و، وویل: «جانسن په دې پوهېده چې د ویتنام په جګړه کې به زیات خلک ووژل شي»؛ خو نوموړي ویلي وو: «دوی به له هغه چا وپوښتي چې دوره یې بشپړه کړې وي.»

جانسن غوره بلله چې جګړه پرمخ بوځي، هغه به غوره بلله چې بې‌شمېره خلک قرباني کړي، نسبت دې ته چې له داسې امکاناتو سره مخامخ شي چې ښایي له څوکۍ لیرې شي او له دې وروسته موږ بې‌شمېره بدلونونه او

په نورو مسايلو کې د نيکسن او د هغه لېونتوب او انتی سميتيزم وليد. بوش نه غواړي چې د امريکا خلک په دې وپوهېږي چې د هغوی حکومت څرنگه کارونه کوي. ماشومان لومړنيو ښوونځيو او ليسو ته ځي، درسي کتابونه يا رسامي شوي رنگه ښکلي کتابونه اخلي چې د متحده ايالاتو جوړښت لري. د هغو «له چکونو او بېلانس» خو دا واقعي داستان نه دی، که چېرې بوش خپله لاره لري موږ نه غواړو پوه شو حکومتونه څنگه خپلې دندې ترسره کوي.

***همدارنگه په دې وروستيو وختونو کې نيويارک ټايمز د جانسن د پوهې او مالوماتو په اړوند د ځينو بدلونونو رپوټ ورکړ چې د تونکين د خليج پېښه کار سازی وه. آيا دا واقعاً نوي مالومات دی او دا يوازې له حقيقت نه وروسته د ټايمز له خوا څرگندونې او مالومات دی.***

سمه ده، داسې خبرې وې چې گويا جانسن پخپله د تونکين د خليج په اړوند شک درلود چې په دې باب خبرونه نه وو، گومان کېده چې د مادوگس ويجاړوونکی يرغل يوه کارسازي يا دسيسه وه. دا يرغل چې نه په ټوله مانا د شمالي ويتنام پر ضد د ويجاوړونکو جاسوسي عملياتو يوه برخه نه وه، بلکې د يوې معمولې دندې په توگه چې په رسمي توگه ادعا کېده ترسره شوې وه. چې د اوږدې مودې لپاره په دې اړوند څه نه ويل کېدل. له هغه پېښې وروسته چې په ١٩٦٤کال په اگست کې ترسره او د چا خبره د تونکين د خليج په نامه ياده شوه د متحده ايالاتو حکومت د امريکا خلکو ته د هغه څه په باب چې پېښ شوي وو په وار وار دروغ وويل.

جانسن رابرت میکنامارا، او دین رسک ټولو، کانګرس ته چې کله یې د تونکین اعلامیه پاس کړه، درواغ ویلي وو. او جانسن ته یې د دې اجازه ورکړه چې هر څه چې غواړي په جنوب ختیزه اسیا کې یې کولی شي.

دا یوه مسأله ده چې وایي موږ ترې زده کړل، چې دا ټولې پېښې یو ډول نندارە وه. دا بل څه دی چې ترې زده یې کړو چې جمهور رییس پوهېده چې دا یوه کارسازي ده یا لږه تر لږه په دې مشکوک و چې دا یوه نندارە او کارسازي ده.

## پنځم څپرکی

## د عامو وګړو پر ضد جګړه

Gabriel Kolko «د جنګ پېړۍ» په نوم په خپل اثر کې لیکي:

***«۱۹۳۷ کال نه وروسته جګړو د جنګیالو او نورو ترمنځ توپیر له منځه وړی دی. عام ولسونه او ټول ملتونه یې تر رواني فشار لاندې راوستي دي.» دبوستون ریویو د یوې مقالې په قول «تر ۳۵ ملیونو وګړو پورې چې د ملکي وګړو په سلو کې ۹۰ کېږي، له دویمې نړیوالې جګړې وروسته په ۱۷۰ جنګونو کې له منځه تللی او وژل شوي دي».***

کولکو په باوري توګه په حقه دی چې وایي دا مخ په زیاتېدو جګړه د ولسي وګړو پر ضد جګړه ده. اټکل شوې چې په لومړۍ نړیواله جګړه کې د پوځي پرسونل په نسبت د ولسي وګړو د مړینې اندازه یو پر لسه وه. له لومړۍ نړیوالې جګړې وروسته د ښارونو بمباري یوه مسأله شوه خو په دویمه نړیواله جګړه کې ډېره څرګنده شوه. په دې اساس ډېر خلک د جګړې په ډګر کې ووژل شول. ښایي چې نور زیات خلک په مرکزي کمپونو، زندانونو، او یا د دریسدن، فرانکفورت، او د هامبورګ په ګڼ مېشتو سیمو کې ووژل شول. یوازې، په توکیو کې په یوه شپه کې د بمي بریدونو له کبله سل زره کسه ووژل شول. پر دې برسېره دوه سوه زره ولسي وګړي د جاپان په هیروشیما او نیګاساکي کې ووژل شول. په دې

ډول دغه تناسب بېخي په بل مخ اوړي او د ولسي وګړو د مړينې اندازه زياتېږي.

د ويتنام د جګړې پر مهال د پوځي پرسونل په نسبت زيات ښاري وګړي ووژل شول. همدا حقيقت د کوريا په جنګ کې هم صدق کوي. زياتره امريکايان نه پوهېږي چې موږ په کوريا کې څه وکړل، خو په واقعيت کې کوريا د ويتنام يو مثال و. په خاص ډول کله چې يې ناپالم بمونه په کليو اچول او له دوه مليونو څخه زياتو خلکو خپل ژوند په کې له لاسه ورکړ، زياتره يې ولسي خلک وو.

جګړه نن په پراخه پيمانه د هغو خلکو په وړاندې ده چې پخپله جنګيالي نه دي. نو په دې دليل جګړه د هر ډول قضاوت له مخې، د منلو نه ده چې د نړيوالو اړيکو او مسايلو او ستونزو د حل لپاره ترسره شي.

د جګړې په باب د کاتوليک د الهياتو او فلسفې تيوري چې کله ناکله يوازې د جنګ د تيورۍ په نوم يادېږي، کارول کېږي. خلکو به ويل چې «يوازې د جنګ تيوري» خلکو به پخوا د دې جملې پر ځای د تناسب د اصولو ګړنه کاروله.

د جينوا کنونشن هم د دې ګړنې يادونه کړې ده. په دې برخه کې وګورئ (AppendixA ). دا په پرېکړه کولو کې يو ډېر مهم اصل و چې آيا جنګ عادلانه دی او که غيرعادلانه، خو کله چې جګړه د ولسي وګړو پر ضد وي او کله چې جګړه په لويه پيمانه ويجاړتيا رامنځته کوي او خطرناکه تکنالوجي په کې کارول کېږي، چې نن ورځ ترې کار اخيستل کېږي، دا په ډاګه او بې له شکه چې ډاروونکي دي. دا سمه ده چې ان تر دې چې کله موږ د کوچنيو جنګونو په باب خبرې کوو او موږ له دويمې

نړیوالې جګړې وروسته د چا خبره یو شمېر کوچني جنګونه درلودل، په جنګونو کې چې یوازې یو میلیون خلک پکې ووژل شول لکه د ایران – عراق جګړه او د نایجیریا کورنۍ جګړه. په هر حال جنګ پخپله یو هدفمنلو او غیرعادلانه پېښه ده، ځکه چې د دغه تناسب اصول په سملاسي توګه د دې حقیقت پر اساس تېری کوي چې تکنالوجي په ډله ییزه توګه بې وزلې خلک خامخا وژني.

***تاسې شېبه د مخه ماته یادونه وکړه چې د سویډني لیکوال Seven Linqvist اثر چې «د بمونو غورځولو تاریخ» نومېږي، لولې. نوموړی لیکې چې د لومړۍ نړیوالې جګړې پر مهال «جګړه ماران په ډېره بې صبرۍ سره د جنګ د ښه پر مخ بېولو لپاره د نویو او سمبال شویو لارو په لټون کې وو او هوایي بمبارد یې د ولسي وګړو پر ضد د چټکو نتیجو او د بریالیتوب غوره لاره بلله.»***

دغه یو په زړه پورې کتاب دی، لیند کویست بیرته لومړۍ نړیوالې جګړې ته ورګرځي، کله چې بمباري په په پراخه پیمانه پیل شوه، سره له دې چې داسې نه لکه وروسته چې بیا پېښ شول. یو ډېر مهم شی چې نوموړی یې موږ ته را یادوي، دا دی چې یا دا چې هغه خلک خبروي چې هېڅ نه پوهېږي او یا فرض کوو چې زیات وګړي په دې خبره نه پوهېږي چې څرنګه دا پرېکړې په قصدي توګه نیول کېږي، چې په دویمه نړیواله جګړه کې یې پر ولسي وګړو بمباري وکړي. ارتور هاریس Arthor Harris چې په انګلستان کې د بمباریو قوماندان و، وینستون چرچېل او د چرچېل سلاکارانو په شعوري توګه پرېکړه وکړه چې د جرمني په ښارونو

کې د کارګرې طبقې نفوس ترور کړي. وګورئ داسې فکر؟ دوی فکر کاوه چې د جرمني د خلکو معنویات به ویجاړ او جنګ به وګټي.

په دویمه نړیواله جګړه کې په عمومي توګه بریتانیا د شپې له خوا بمبارد کاوه او امریکا د ورځې له خوا. د شپې له خوا بمبارد کې په خاص ډول غوړېدونکې بمونه (فرشي بمونه) وو، ځکه چې RAF نه پوهېدل چې په څه شي بمباري کوي. دوی په دغه پرېکړې وروسته هېڅ زړه سوی نه ښکاره کاوه چې د غوړېدونکو بمونو د غورځولو په اړوند یې پرېکړې کړې وې، چې په دریسدن، هامبورګ، فرانکفورت او نورو ښارونو بمباري وکړي. امریکایانو داسې ښووله چې ګویا زیات دقیق دي. موږ د Norden بمباریو ځایونه لیدل چې د ورځې له خوا بمبارد کېده. فرض کړو که موږ ډېر دقیق وو او یوازې پوځي اهداف مو بمباري کول خو زه د خپلې تجربې له مخې د یو بمباري کوونکي په توګه د دویمې نړیوالې جګړې پر مهال ویلای شم چې د Norden بم غورځولو ځای دقیق نه و. هغه له څلورو زرو فوټو څخه رالوېده او ان هغه چې له یوولسو زرو فوټو څخه رالوېده هغه ډېر لږ دقیق وو. خو موږ له دېرشو زرو فوټو څخه بمبارد کاوه. او کله چې به بمونه له لوړ واټن راوغورځېدل، د لاندې هدف د تشخیص لپاره هېڅ لاره نه وه چې پوځي هدف وویشتل شي. ستاسو بمونه به په ټوله ساحه کې ولګېږي، چې یو پر څلور میل په ټوله ساحه کې پریواته. خو دا یوه بهانه ده چې موږ ګویا پر ځای او دقیق بمونه غورځوو. موږ عام وګړي وژنو.

د بمباریو تاریخ اثر کې لینکویست Linqvist د کورتیزلی مای خبرې ته ګوته نیسي چې وروسته بیا د متحده ایالاتو د هوایي ستراتیژیکو چارو قوماندان شو، اروپا ته ولاړ او ویې لیدل چې ArthurHanvie آرتور

هاروی څه کوي «هامبورگ او دریسدن و شوده چې Lemay لیمای څه ترسره کړل. همدارنگه Lemay لیمای په ولسي وګړو باندې د بمبارد تاکتیک پخپلو سترګو ولید او بیا پاسفیک ته ولاړ او هلته بیا د دې مسئول وټاکل شو چې پرېکړه وکړي چې په توکیو بمبارد وکړي. په ۱۹۳۵ کال د پسرلي شپه کې بمباریو توکیو سخت وسوځوله. په هغه کې سل زر کسه ووژل شول. څو کاله وروسته بیا هم د ویتنام په جنګ کې کورتیز لیمای و چې د ارتور هارویز درسونه یې تازه کړل. نوموړي د ویتنام په باب ویلي وو: «موږ غواړو هغوی بمبارد کړو چې بېرته د حجر (ډبرو دوره) دورې ته ولاړ شي.»

***خو اوس داسې ادعا کېږي چې ګویا موږ لارښود شوي بمونه لرو، داسې لارښود شوي توغندي چې په دقیق ډول خپل هدف ولي. اوس چې د لارښود شویو بمونو کومه ادعا کېږي چې ګویا کولی شي ټاکلې نقطه وولي.***

دا دروغ او بې مانا خبره ده. د خلیج له جګړې نه وروسته دوی په دې پوه شول چې په سلو کې ۹۳ بمونه چې لارښود شوي بمونه بلل کېدل په نورو ځایونو لګیدلي وو. دغه لارښود شوي بمونه زیاتره وخت خپل هدف ورک کوي. ټول په سلو کې ۷۰ زموږ بمونه پخپلو اهدافو نه وو لګېدلي.

متحده ایالاتو ۸۸۵۰۰ تنه بمونه د جګړې د درې څلوېښت ورځو په لړ کې پر عراق وغورځول. لکه څنګه چې واشنګټن پوست د هدف له مخې کښلي: «دې کار په لویه پیمانه عراقي ټولنه معیوبه کړه.» د راپورتر بارتون ګیلمان Barton Geliman د وینا له مخې چې وایي، په خاص ډول د

جګړې په وروستیو کې ځینې هدفونه په قصدي توګه بمبارد شول او دا کار په دې خاطر وشو چې له جګړې وروسته په عراق باندې خپل نفوذ او اغېز وساتي... پوځي دوکتورینو هیله درلوده چې دغه بمباردمان به د نړیوالو اقتصادي بندیزونو رواني اغېزه ټینګه وساتي... په دې اساس د دې هدفونو له امله ملکي جوړښت او سیستمونو ته زیان تل د تبصره کوونکو له خوا تشریح کېده او د دې مانا دا وه چې جنګ یعنې ضمانت او آګاهانه شکل یې وکاراوه.»

خو د دې کار نتیجه په عراق باندې ډېره ویجاړوونکې غڅ اخیستنه وه چې ولسي وګړي یې په لارښود شویو بمونو ووژل. موږ د پېښه اوس په ډېره بربنډه توګه په افغانستان کې هم ګورو. زموږ الوتکو له لوړ و واټنونو څخه بمونه غورځول، ځکه چې هغوی غوښتل له هوایي ضد توغندیو څخه په امن کې وي. کله چې تاسې له لوړ واټن څخه په ډېرو مدرنو وسایلو سره بمونه غورځوئ، ارومرو چې ډاډه نه یاست چې ستاسې ګوزار به په خپل هدف سم ولګېږي. تاسې په ځمکه کې هېڅ شی نه شئ پیدا کولی. کله چې تاسې په ځمکه کې د چاودنې جرقې وینئ، کړیکې او آوازونه نه اورئ، وینې نه وینئ، اندامونه نه وینئ او هېڅ شی نه وینئ. په افغانستان کې کلي بمبارد شول، د هستوګنې سیمې بمبارد شوې؛ خو ورځپاڼو په د نښو مخونو کی پټول. افغان ولس څرګندونې کوي چې څرنګه د هغوی د ختو کورونه د امریکایي بمونو په اثر ویجاړ شول. متحده ایالاتو په افغانستان کې د نړیوال سره صلیب ودانۍ بمبارد کړه، نه یوازې یو وار؛ بلکې دوه وارې یې بمبارد کړه. سره له دې چې د هغه ودانۍ بام د سره صلیب سمبول لاره او د هغه موقعیت ډېر ښکاره او څرګند و. خو نوموړې باید لږ تر لږه ډاډ ورکړی وای چې د متحده ایالاتو پوځ به هېڅکله په سره

صلیب بمبارد ونه کړي. دریېم توغندی هم همالته د سره صلیب پر ودانۍ ولګېده. ان تر دې چې وروسته له هغه چې متحده ایالاتو د لومړۍ حملې په باب بخښنه وغوښته خو د نیویارک ټایمز په قول یوې امریکایي الوتکې ته امر شوی و چې د سره صلیب ګودام وولي، خو هدف غلط شو او په خوا کې د اوسېدنې کورونه ولګېدل.

همدارنګه متحده ایالاتو څلور تنه هغه افغانان چې د ملګرو ملتونو د ماین پاکولو په موسسه کې یې کار کاوه او ژوند یې لا د مخه خطر ته ورکړی وو، ووژل. د یوه سړي د تره زوی چې په پېښه کې وژل شوی و، بوستون ګلوب Boston Globe ته وویل: «دوی خدایان نه دي چې غواړي هر هدف په دقیق ډول وولي، خو دوی نه شي کولی چې هر توغندی د اسامه بن لادن او د ترهګرۍ کمپونو ته واستوي.»

همدارنګه دا څرګنده او جوته ده چې د لاربښود شویو بمونو په اړوند ټولې خبرې یوه هڅه ده او زه وېرېږم چې دا په لویه پیمانه یوه هڅه ده چې د امریکا خلکو ته قناعت ورکړي چې ګویا موږ به په بمبارۍ کې پاملرنه کوو. دا ډېره مهمه ده، د هغه څه پټول چې موږ یې د افغانستان د خلکو په وړاندې ترسره کوو، ډېر ضروري دي چې زیاتره خلک –داسې نه چې د عادلانه جګړې په باب هره تیوري وړاندې کړي – د یو ډول ګډې روحیې یا یو ډول عامه ذهنیت د پیدا کېدو اټکل کوي، چې یو اخلاقي اټکل دی.

که چېرې دوی پوهېدلي چې موږ په لویه پیمانه خلک وژنو او په سلګونو زره کسان له خپلو کورونو څخه بې ځایه کوو، دوی به هېڅکله دغه شان په مهربانانه نظر سره د افغان جګړې لپاره ګام نه وای اوچت کړی. دوی

به هېڅکله په اسانۍ سره له خپل حکومت سره خپل ملاتړ نه وای ښوولی. په هر حال، د حکومت لپاره دا همیت وړ ده چې په بشریت باندې زموږ د بمونو اثرات پټ کړي. که چېرې تاسې دا مسأله د امریکا له خلکو پټه کړئ، وروسته به دا امکان ولري چې ولې به خلکو فکر کاوه چې په دې حملو باندې موږ چا ته زیان نه رسوو؟ په دې اساس به که د افغانستان حملو ترهګري محدود نو ګټوره به وه.

### په انسانانو باندې د هغو اغېزه څه ده؟

دا جوته ده چې په بمباریو کې ولسي وګړي وژل کېږي. ما د ګلدرې په سیمه باندې د یرغل په باب چې د ډسمبر په لومړۍ نېټه سرته ورسېده، ولوسته چې ویل شوي وو: «د کلي یو اوسېدونکی چې له یرغل څخه ژوندی پاتې و، وویل چې په کلي کې څه نه وو پاتې، زما د کورنۍ دولس تنه ووژل شول، زه د خپلې کورنۍ یوازینی پاتې شوی یم، ما خپل ماشومان او مېرمن له لاسه ورکړل او هغوی نور په دې نړۍ کې نشته.» خو دا ډول رپوټونه د عامو وګړو له پامه لیري وو، هېڅکله په ملي تلویزیون کې په څرګنده توګه له کومه ځایه چې امریکایان خبرونه اوري، نه دي ښوول شوي. له بل پلوه هغوی داسې ادعا کوي چې په ولسي وګړو بمبارد کله کله او هغه هم په تصادفي توګه ترسره کېږي. CNN - Walter Isaacson اجرایي مشر خپلو کارکوونکو ته وویل چې دا د منلو وړ نه ده چې په افغانستان کې د تلفاتو اندازه او ستونزې ډېرې زیاتې وښودل شي. په افغانستان کې د متحده ایالاتو د جګړې په اړوند یوه مسئول شخص په پاناماسیتی کې د نیوهیرالی کارکوونکو ته وویل: «په لومړیو مخونو کې په

افغانستان کې د امریکا د متحده ایالاتو د جګړې په اړوند د ولسي قربانیو تصویرونه مه چاپوئ. ځکه چې ورځپاڼې ته شکایتونه رارسېدلي وو.»

پنتاګون په قصدي توګه هڅه کوي چې د تلفاتو شمېره له حقیقت نه لږه وښيي. د ملګرو ملتونو د یوه رپوټ په اساس، د متحده ایالاتو الوتکو هرات ته نژدې یو جومات بمبارد کړ. د پنتاګون ویاندې ویکتوریا کلارک د نوموړي رپوټ په باب وویل: «موږ د هدف د ویشتلو په برخه کې له فوق العاده غور نه کار اخلو. زموږ هدف پوځي ځایونه وو. زموږ هدف القاعده دي. دا هغه څه دي چې موږ یې غواړو، دا د بې پروایۍ په اثر یوه خرابي ده. دا یو ډول برسېرنه خبره ده په دې اساس یې اوس په ډېره جدي توګه مخه نیول شوې ده.»

د پنتاګون چارواکي دا خبره چې نیمایي نړۍ د واشنګټن بلې خوا ته ده، په ډاډ سره ردوي. واشنګټن پوست څرګنده کړه چې څومره مالومات چې د افغانستان د جګړې په اړوند پنتاګون خپاره کړي دي، له جګړې څخه ډېر لیرې او زیاتې یې غلطې اوازې دي. زما په یاد دي چې د بوش د دولت سکرتر کولین پاول چې پخوا د امریکا د قواوو لوی درستیز و، وویل کله چې له ما څخه د خلیج د جګړې پر مهال د وژل شویو عراقیانو د شمېر په باب پوښتنه وشوه نو ومې ویل: «په واقعیت کی دا کوم شمېر نه دی خو په جدي توګه ما ته ډېر په زړه پورې دی.»

خو له کلیو او روغتونونو څخه په مطبوعاتي رپوټونو کې راغلي چې ټپیان په ځمکه پراته وو او د پاکستان له پولې سره چې کډوال له بمباریو څخه په تېښته کې وو، دې بمباریو بېلابېلې کیسې راڅرګندې کړې. د فرانس پرس ایجنسي د رپوټ له مخې چې لیکي:

«کډوال پاکستان ته رااوړي... د نهو تنو ماشومانو په ګډون د شلو تنو حال داسې دی چې د تېښتې پر مهال وژل شوي وو. هغوی د افغانستان په سهیل کې د ترینکوټ له ښاره د حملو پر اثر په تراکتورونو او تریلرونو کې راتښتېدلي وو. یو ژوندی پاتی شوی ۲۸ کلن عبد المعروف وویل: «کله چې په یوه کنډواله کلیواله سیمه کې په یوه تراکتور باندې چې له روغتون څخه ډېره لیري و، بمباری وشوه، ټیپانو د مرستو لپاره بې ګتې بغارې او کړیکې وهلې.

د هرات کډوال چې شپږ ورځې یې سفر کړی و، چې په ختیځ کې د پاکستان پولې ته ځانونه ورسوي، د کندهار په لاره کې یې د ټولو ترهوونکو او وحشتناکو ویجاړیو یادونه کوله او ویل یې چې کندهار په بشپړه توګه ویجاړ او هر څه د لوټو او ډبرو په ډېرۍ بدل شوی دی».

ما په Boston Globe کې د جلال‌آباد په یوه روغتون کې د پاملرنې د یونټ د شدیدو هڅو په باب د احساساتو یو لړ ډکې احصائیې ولوستې. «روغتون چې د امریکایي بمباریو په اثر له مړو او قربانیانو ډک وو، د یونټ کارکوونکي ډېر ستړي او بې باوره مالومېدل، مخونه یې تک سپین تښتېدلي وو، تا به ویل چې هېڅ وینه په کی نشته». «په یوه تخت کې لس کلن نورمحمد چې بنداژ ترې تاوو، پروت و. نوموړي خپلې سترګې او لاسونه د هغه بم پر اثر چې د یکشنبې د ماښام پر مهال د نوموړي پر کور راپریوتی و او بشپړ یې خراب کړی و، له لاسه ورکړی وې. د روغتون مشر ګلوجان شینواري د ماشوم د ټپې کېدو له امله د تایید سر وخوځاوه. «د امریکا متحده ایالات فکر کوي چې دا به اسامه وي. شینواري وویل: «که دا اسامه نه وي نو دوی ولې دا کار کوي؟» د مارکو روغتون ته یې تېره

اوونی ۱۷ تنه ټپيان راوړل. مقاماتو وويل چې تقريباً ۸۹ تنه ولسي وګړي په څو کليو کې ووژل شول.

ټېره ورځ په روغتون کې، يوه بم يوه کورنۍ په بشپړه توګه تباه کړې وه. فيصل کريم (فضل کريم) په بم وژل شوی و. په يوه تخت کې د هغه مېرمن، مصطفی، جمعه چې سرونه يې سخت ټپيان وو، پراته وو.

... د مېرمنی خواوشاته د هغې شپږ ماشومان په پلستر کې پراته وو، دوی ټول له اتلس کلنۍ برېښنا نه نيولي تر ۱۰ مياشتني رحيم پورې پراته وو. اته کلن زاهدالله د کوما په حالت کې و.»

Barry Bearak د ۲۰۰۱ کال د ډسمبر په ۱۵ نېټه د افغانستان د مادو له کلي رپوټ ورکړ چې د امريکايي بمباريو له کبله ۱۵ کورونه د لرګو د ترازو او خاورو په ډېرۍ بدل شوي او له منځه تللي دي. پنځه پنځوس کسان په کې وژل شوي دي. پيراګل وويل: «په هغه شپه چې موږ ويده وو هغوی بمونه راغورځول.» نوموړي په کې خويندې او د کورنۍ غړي له لاسه ورکړل. زياتره مړي، ماشومان وو.

خو څرنګه چې بيراک يادونه کوي يو بل کليوال وويل: «ښايي چې د مادو د کلي خلک هېڅ و نه پوهېدل چې آيا بمونه په غلطۍ رالوېږي او که هدف به وي، خو مسأله د پراخې جګړې په پيمانه هېره شوې وه.» د ژورنالېستانو له هغو رپوټونو څخه چې ويې کړای شول، له ډېرو سختو او ستونزمنو شرايطو سره يې بيا هم برابر کړی، څو برخې رانقلوم. واشنګټن پست ليکي: «راپورترانو د محدودو او ان ډېرو سختو بنديزونو لاندې کار کاوه او د ۱۹۹۱ کال پر مهال د خليج د جګړې په نسبت ګډه ژورناليستيکه همکاري ډېره محدوده وه.

د دسمبر په ۵ نېټه د Marine ژورنالېستان د افغانستان په یوه کمپ کې ځای پرځای وو چې خبر راغی، د متحده ایالاتو سربازان د ملگرتیا او دوستانه ډزو په پېښه کې ووژل شول. ۵۲ B بمبارد الوتکو دوه د متحده ایالاتو جنگیالي ووژل. سره له دې چې د هغوی مړي بېرته د قواو مرکز ته چې سل گزه اخوا ته وړاندې په کې ژورنالېستان ځای پرځای شوی وو، راوړل شول، دوی ته اجازه ورنه کړل شوه چې ټپیانو ته ورشي او عکسونه یې واخلي.»

دغه راز لکه چې موږ د بهرنیو مطبوعاتو په رپوټونو کې ولوستل یا مو له مخابرو نه واورېدل او یا دا چې کومه خاصه کیسه یې په مطبوعاتو کې چاپ شوې وه. خو د هغه بېوزلو خلکو په باب چې په بمباري کې ووژل شول، موږ اړ وو چې د هغو ټولو په باب چې رپوټونه یې نه وو خپاره شوي، فکر وکړو. موږ اړ وو چې د ټولو کیسو په اړوند فکر وکړو چې موږ ته تر اوسه نه دي ویل شوي. همدارنگه اړ وو چې یوه بله پوښتنه وکړو: «ایا د ولسي وگړو وژل، زموږ په بمباریو کې کوم تصادف دی؟»

ان تر دې که تاسو د پنتاگون په ادعاوو باور کوئ، چې گویا هغوی نه غواړي چې ولسي وگړي ووژني که چېرې ملکي وگړي په بیا بیا قرباني کېږي او دا د اټکل وړ ده چې دوی به وکړای شي چې دا یو ناڅاپي پېښه وبولي که چېرې د بمونو په اثر د ملکي وگړو وژل حتمي وي، لکه څنگه چې دونالد رامز فیلد پرې باور لري، دا نو هېڅ ناڅاپي پېښه نه ده، خلک دا جگړه تعقیبوي، او د وژنو مرتکب کېږي. دوی په ترهگرۍ کې ښکېلېږي.

په ۱۹۹۸ کال کې تاسې د یوه عراقي ډاکټر چې محمد علي عبیدي

نومېږي او په لندن کې ژوند کوي په زړه پورې څرګندونه درلوده.

هوکې! د ۱۹۹۸ کال په ډسمبر کې ما ته له لندن څخه یو برېښنالیک راورسېد. په دغه میاشت کې هلته په عراق باندې د متحده ایالاتو د بمباریو په اړوند ځانګړې احساسات موجود وو. دا برېښنالیک ما ته راورسېد، د ډاکټر العبیدي برېښنالیک زما له توقع څخه بهر وو.

زه فکر کوم، کوم شیان چې ما لیکلي وو، هغه لوستي وو. نوموړي ما ته لیکلي وو چې عراق یې ځکه پرېښود او ترې راووت چې صدام حسین یې ورته پلار او ورور ووژل. هغه ډاکټر لندن ته راغلی و، چې خپلې روغتیایي چارې پر مخ بوځي. نوموړي زیاته کړې وه چې څو ورځې د مخه امریکایي توغندیو زما د مور کور ړنګ کړ. زما مور له بغداد نه بهر د ښار په لمن کې اوسېده، زما د مېرمنې خور یې هم ورسره وژلې وه. خو د ورور کونډه له درېیو ماشومانو سره د صدام حسین له خوا وژل شوي وو، چې په دې ډول صدام حسین او بل کلینتون دواړو یو شان د هغه د کورنۍ غړي وژلي وو.

ما دغه کیسه له انترنت نه راوویسته او څومره چې مې کولی شول، په پراخه پیمانه مې خپره کړه. ځکه چې ما فکر کاوه چې دا کیسه به په نورو خلکو هم دا شان اغېزه وکړي. تر هغه وخته چې ما د یوه شخص او د هغه د کورنۍ بشري داستان ولوست. په عراق باندې د متحده ایالاتو بمباریو د یو شانته والي او برابرۍ مجرده مفکوره په رښتیا چې ما ته ډېره کوچنۍ مانا درلوده. دا یوه بنستیزه ستونزه ده چې موږ خبرونه اورو او د بمونو په باب یې لولو. کله چې تاسې هغه احصایې او ارقام و ګورئ چې څومره خلک ووژل شول، موږ ورته پاملرنه نه کوو. واقعیت دا دی چې په هغه وخت

کې زيات اغېزمن او د پاملرنې وه گرځې چې داسې پېښې اوس په عملي ډول د يوه يا زياتو انسانانو په ځانگړنه او کرکتر بدلې شوې دي. يو دليل خو دا دی چې موږ ټولو ته د سپټامبر د يوولسمې پېښو چې په نيويارک او واشنگټن کې پېښې شوي، ټکان راکړ، موږ له ډېر نژدې واټن څخه په بيا بيا سره قربانيان وليدل. موږ د ديوالو ټوټې او هغه خلک وليدل چې ځانونه يې له کړکيو غورځول. موږ هغه خلک وليدل چې له ناورين او فاجعې څخه په تېښته وو. يو شی چې له دې ناوړې پېښې وروسته يې زما په ذهن کې اغېزه وکړه، دا دی چې په نوره نړۍ کې دا ډول ناوړه پېښې ترسره کېږي، خو موږ د هغو په باب هېڅ پروا نه کوو.

همدارنگه کله چې زه په هوايي قواوو کې بم غورځوونکی وم، د حقيقت په باب مې فکر کاوه. موږ له ډېرشو زرو فوټو څخه بمونه غورځول، ما هېڅ انسان نه ليده. ما ته داسې ښکارېدل لکه يو څوک چې د واشنگټن او نيويارک د تلويزيون پر مخ راڅرگندېږي، دا زياتره هلته په اروپايي ښارونو کله چې ما بمونه غورځول، واقع کېدل، خو دې کار ما ته هېڅ مانا نه درلوده. زه په «يوه ښه جگړه» کې ښکېل وم. ما ځيني کارونه کول. زه په حقه، سم او حقيقي لوري کې وم. دغلته په جگړه کې همېشه سم لوری ناسم لوری وو. خو دا ستاسې لوري په حقه لوري دي. ځکه که يو وار تاسې پرېکړه وکړئ، چې په حقه لوري کې ياست، نو هر څه پر مخ ځي. دا هېڅ مانا نه لري چې نور چا ته څه پېښېږي.

***له شک پرته يوازې د هغو وگړو په شان يې احساس کېږي لکه چې په لاشعوري توگه يې د سپټمبر په يوولسمه نېټه يرغل وکړ.***

هو! دې کار ځینې سببونه درلودل، دوی احساس کاوه چې دوی په حق لوري کې دي او په دې ډول هغه ۳۰۰۰ تنه چې مړه شول، مانا نه لري. لکه د عراق په سلګونه زره قربانیان چې موږ ته یو راز دی یا یوازې د هیروشیما او نګاساکي د خلکو مړینه چې هاري ترومن ته بې مانا دي، موږ باید په یاد ولرو چې ترومن هیروشیما د یو پوځي هدف په توګه اعلان کړ. کله چې ترومن د بم غورځولو اعلان وکړ، نوموړي وویل: «نړۍ به لومړنی اتمي بم په یاد ولري چې د هیروشیما په پوځي اډه وغورځېده، زموږ هدف دا وو چې دې لومړۍ حمله کې د امکان تر حده د ملکیانو له وژلو ډډه وشي.» زما په یاد دي کله چې ما د پنتاګون د ګرمن داولا پان وینا ولوسته، له نوموړي پوښتنه شوې وه، چې په افغانستان کې ملکي وګړي ووژل شول. نوموړي ځواب ورکړی و: «ولسي وګړي وژل شوي دي؟ امکان لري، که چېرې وژل شوی وي، سبب به یې دا و چې هغوی به د پوځي اهدافو په شاوخوا کې نژدې وو.»

## شپږم څپرکی

# د جګړې منطق

***د رولنګ ستون Rolling Stone مجلې له تاسې پوښتنه کړې وه چې تاسې د راتلونکو لپاره څه اټکل کوئ. تاسې ډېر په زړه پورې ځواب ورکړی و. د Bob Dylan's سندره «د جنګ ماسټران».***

ما په دې وروستیو وختونو کې «د جنګ ماسټران» سندره واورېدله. په حقیقت کې ما نن سهار ګاډی چلاوه. «د جنګ ماسټران» د راتلونکې لپاره د لږې ډېره ښه ګڼه وه. همدارنګه ما غوښتل چې د Dylan نورې هغه سندرې چې وایې لکه: George Jakson , Hurrican carter او Emmett Till یې هم د هغې سره یوځای کړه. په دې اړوند سندرې یې ډېرې پیاوړې او راکښوونکې دي. دا سندرې موږ ته د اوسني دوران او تمدن په اړوند ټکان راکوي.

ما د Dylan کنسرت په بله شپه په بوستون کې ولیده. نوموړي د جنګ ضد دوه نورې سندرې ویلې دي. « تف په باد کې»، «همېشه په یاد ساتي.». هو کې تر هغې چې نوموړی خبرېږي، څومره مړي به وشي. ډېر خلک ووژل شول. جان براون د هغه سرباز کیسه کوي چې له جګړې څخه بېرته معیوب راستون شو او د اورګاډي په ستیشن کې یې له مور سره روغبړ وکړ:

موريږ! کله به زه نه ښکار وکړم؟
تا فکر کاوه، کومه لوبه چې زه یې کوم، دا ډېره ښه هغه ده؟
هو زه د جنګ په ډګر کې وم او ته په کور کې وې... ویاړ دې کاوه.
خو ته هلته زما پر ځای نه وې.
خو کله چې زه هلته وم، ما فکر کاوه.
اوه خدایه! زه دلته څه کوم؟
زه هڅه کوم چې بل څوک مړ کړم او پخپله مړ شم.
خو هغه شی چې زه ترې وېرېدلم.
هغه دا چې دښمن ما ته رانژدې کېده.
ما د هغه مخ ولیده، هغه کټ مټ زما په څېر و.

فکر کوم چې موږ هم اړ یو چې د تاریخ په پام کې نیولو سره نورې زیاتې مثبتې او له هڅونې ډکې کیسې ولرو. ښایي چې ,BruceSpringsteen PeteSegeeger Ani Difranco ځینې سندرې واورو، چې په ځینو مناسبتونو یا جشنونو یا له ظلم سره د مقاومت د نمانځلو په مراسمو کې یې خلک وایي.

***داسې برېښي چې د باب ډیلان Bob Dylan بله سندره له اوسني وخت سره سمون خوري: «خدای له موږ سره زموږ په څنګ کې» جورج بوش په دې وروستیو وختو کې وویل: «خدای له موږ سره و. خدای په جګړه کې بې پرې نه دی.» داسې برېښي چې د بوش اداره***

***فکر کوي چې خدای د هغوی پر خوا دی. لکه څنګه چې اسامه بن لادن هم چې فکر کوي خدای د هغه پر خوا دی.»***

ډېره ښه! که چېرې خدای بې‌طرفه نه وای نو بوش به تللی وای... خو ما هېڅکله د خدای بې‌طرفي نه ده ازمویلې. په واقعیت کې ټولو امریکایي ولسمشرانو له خدایه مرسته غوښتې ده. هغه څه چې د کلیسا او دولت جدایي یې بولي په واقعیت کې یوه کنایه ده. مالومېده چې هر ولسمشر په مطلقه توګه زارۍ کوي او له خدایه غواړي چې هغه وبخښي. رونالد ریګان لیکلي وو: «ښایي چې د یوه ملت په توګه زموږ جشن او د شکر ادا کولو د مراسمو د ورځې په توګه بل هېڅ دود زموږ ځانګړنې نه څرګندوي. د دې مفکورې ریښې زموږ په عیسوی او مسیحي مواریثو کې ډېرې ژورې دي. دشکر ادا کولو مراسم چې په خدای باندې یوه ډېره کلکه او ژوره عقیده ده، زموږ ملت یې جوړ کړی دی، موږ ورپورې د زړه له کومې تړلي یو او خدای پر موږ رحمت او مهرباني جاري کړې ده.»

خو بوش خدای ته له هر چا نه زیاتې زارۍ کوي او کله چې د هغه چا پر ضد چې د سپټمبر د یوولسمې مرتکب شوي دي، «د جهاد صلیبي یا مقدسې جګړې» په باب خبرې کوي، نو بیا متحده ایالات د یوه صلیبي جنګ او هېواد په توګه ښیي او وایي چې خدای له موږ سره دی.

په زړه پورې دا ده چې خدای د حکومت په څېره کم سیموي، کله چې ستر تېري ته لاس اچوی. واقعیت دا دی چې کله څوک ستر تیری کوي، نو وارخطا کېږي او یو لړ مرستو ته اړه لري، خو د تېري په وخت کې له هوښیارانو څخه د مرستې هیله نشته، خو څرنګه چې په دې حالت کې یوازینی هغه څوک چې فکر نه کوي، هغه خدای دی، نو کولای شي چې

خپل لاس د خدای مرستې ته وروغځوي. هغه ستاسې سره په خوا کې نه دی، چې له تاسې سره مخالفت وکړي. په حقیقت کې دا ناوړه عمل دی چې ترسره کوي يې او دا کار په دې خاطر ترسره کېږي چې زيات خلک په خدای عقيده لري. کليسا ته ځي او خدای د زور د موډل په توګه پېژني. وروسته بيا له خدايه د يوه داسې غير اخلاقي کار د ملاتړ غوښتنه کوي چې هغه جګړه ده.

***Eugene Debs* ايوګين ديبس په ۱۹۱۵ کال کې په يو ليک کې نيويارک سن *NewYork Sun* ته کښلي وو. که چېرې امريکا په رښتيا سره د جنګ وژنې او بربريت مخالف وي، نو د سولې د يوې اعلاميې په خپرولو دې د خپلې بې وسلې کولو له لیارې د نړۍ د نورو ملتونو په څېر شي. د جنګ په برخه کې انديښنه بايد يوازې د خبرو له لارې نه وي، بلکې په عمل کې خپلو ګاونډيو ته درناوی او په خپل هېواد کې د امنيت او په نړيکې دې د مرګ، وژنې او بربادۍ په وړاندې، کړنلاره غوره کړي.**

Debs د جګړې په باب خبرې کولې، ځکه جنګ په اروپا کې پيل شو او امريکا په جنګ کې ښکېل نه وه، خلکو د جنګ په باب فکر او انديښنه کوله او امريکايي پوځونو تياری نيوه. ديبس Debs په دې ګروهه وو چې موږ بايد د سولې لپاره کار وکړو، نه د جنګ لپاره تړونونه.

***Debs په پیسو باندې د وسلو پلورل او د دفاعي قوت زیاتولو موضوع هم څیړې چې ګویا د سولې د ټینګښت په خاطر ده، چې دې مسألې د ملي دفاعي توغندیو په خبرو کې هم انعکاس کړی دی.***

هو، د بوش اداره د دفاعي توغندیو غوښتنه کوي. نه یوازې اداره بلکې دموکرات ګوند هم چې یوازې په اصطلاح یو مخالف ګوند دی، خو په واقعیت د بهرني سیاست په برخه کې همېشه د حکومت له پالیسۍ سره یو ځای پرمخ ځي. دموکرات ګوند له دې مفکورې سره چې د توغندیو (بدنه) یا توغندي وړونکی سره له دې چې د ستورو د جنګ د پروګرام په وخت کې پرې انتقاد شوی و او دا خبره جوته شوې وه چې ساینسپوهانو په وار وار ویل چې دا ازمایښت په ساده ګۍ سره کار نه کوي. ازمایښتونه داسې طرح شول چې د توغندیو دفاعي اغېزه جوته کړي خو داسې ثابته شوه چې دغه توغندي دفاعي وس نه لري.

وروسته بیا تاسې د دفاعي توغندیو په وړاندې یو بل بشپړ بحث او خبرې اترې لرئ چې د ۱۹۷۲ کال د روسیي له ګواښ سره د بالستیک توغندیو د له منځه وړلو له لارې تاسې د سترو وسلو د سیالیو امکان رامنځته کړ. تاسې نورو ملتونو ته چلنج ورکړ چې وسلو ته انکشاف ورکړي. چې کولی شي د ملي توغندیو دفاعي لېږدوونکي په څنګ ځیني یا ناسیده توګه جوړ کړئ. د وسلو د تکنالوجۍ تاریخ وایي چې هر وخت چې تاسو دفاعي تکنالوجۍ ته پراختیا ورکړئ، چې برې ترلاسه کړئ، نو ډېر ژر یوې بلې ګوزاریزې تکنالوجي پراختیا موندلې وي، چې په ړومبنۍ باندې غلبه حاصله کړي. د فرانسې له خوا جوړ شوی ماګینات لاین Maginotline چې فکر کېږي هغوی د جرمني له اشغال څخه ژغوري او د یو وخت په دوران کې یې دغه ماګینات لاین Maginotline جوړ کړه

خو وخت يې تېر شوی و. دفاعي توغندي په اساسي توګه داسې پروګرام دی چې د کارپوریشنونو له خوا د زیاتې ګټې د ترلاسه کولو لپاره رامنځته شوي دی او د دې سیستم په جوړېدو سره په ملیونونه ډالره ترلاسه کوي. دا د امریکا له خلکو څخه ډېره ستره غلا ده. د ایزنهاور دا وینا چې وايي: «هر یو ټوپک چې جوړ شوی دی، هرې جنګي بېړۍ چې لنګر اچولی دی، هر توغندی چې توغول شوی دی، په پای کې به احساس شي چې دا د هغو وږو او بربنډو څخه غلا ده، له هغو څخه غلا ده چې ساړه یې کېږي او کالي نه لري. نړۍ یوازې په وسلو پیسې نه لګوي. دا پیسې د کارګرانو په سخت کار، د ساینسپوهانو په اصالت او د هغوی د ماشومانو په امېدونو لګېږي.»

***پولیندی انقلابي روزا لوګزامبورګ Rosa Luxembourg په ۱۹۱۱ کال کې ولیکل چې «پوځیتوب په دواړو شکلونو کې د جګړې په توګه او د سوله ییزې وسلې په توګه د یوه قانوني ماشوم په توګه د پانګوالۍ منطقي نتیجه ده.»***

آیا په دې برخه کې د جګړې او د پانګوالۍ تر اغېزې لاندې د پلان شوي اقتصاد ترمنځ اړیکې شته؟ په یقیني توګه دلته د جګړې او پانګوالۍ (کاپیتالیزم) ترمنځ اړیکې شته. دا د دې مانا نه لري چې دا یوه ځانګړې اړیکه ده. موږ له پانګوالۍ څخه دمخه هم جګړې درلودې او موږ داسې جګړې هم درلودې چې له پانګوالۍ نه دمخه په کې دولتونه ښکېل وو. موږ داسې جنګونه هم درلودل چې شوروي اتحاد په کې ښکېل و، دانه

یوازې دودیزه پانګوالي دولتونه، نه یوازې سوسیالست دولتونه وو بلکې ځینې وختونه «هغه د دولتي پانګوالۍ» په نوم هم یادېږي.

کله چې تاسې یوه پانګواله ټولنه نه لرئ، نو جنګ نه لرئ. خو په باوري توګه چې پانګوالې ټولنه جګړې ته د لګښت مواد ورکوي او همدارنګه جګړه پانګوالي تغذیه کوي. تاسې ډېر ژر یوه ټولنه لرئ، چې د ګټې او سود پر بنسټ پر مخ ځي، تاسې د ملتونو په داسې حالت کې یاست، چې نور ملتونه، نور خلک او نور شیان زېښي. ملتونه د ګټې لپاره سیالۍ کوي او بیا ځي، له یو بل سره په جګړه کې ښکېل کېږي. تاسې وینئ، چې څومره جنګونه د مستعمرو پر سر وشول، د خامو موادو، د ارزان بیه بشري قوې لپاره وشول، دې ته وایي امپریالیزم.

په دې اساس پانګوالي د ګټې او سود په بنسټ چې اقتصادي زېرمې یې حتمي ډول دی، د اولسونو ترمنځ جنګونه جوړوي. دغه راز تاسې یو بل حقیقت ته د پانګوالۍ په اړوند وګورئ. د پانګوالۍ تر اثر لاندې هغه شرکتونه چې وسلې تولیدوي او له دغو جنګي وسلو څخه ډېره ستره ګټه ترلاسه کوي، نو دواړه خوشحاله دي چې په جنګ کې ښکېل او هغه ته چمتووالی وښیي. کله چې تاسې جنګ ته تیاری نیسئ، د ټولو حکومتي ټرونونو له مخې پیسې ترلاسه کوئ او بیا په جنګ ورګډېږئ او خپل ټول تولیدات کاروئ او دې ته اړ یاست چې د هغو پر ځای نور جوړ کړئ.

هو، د پانګوالۍ او جګړې ترمنځ اړیکې ډېرې نژدې دي. زه په دې کې شک کوم چې که موږ وکړای شو، له پانګوالۍ پرته یوه داسې نړۍ چې پرته له دې چې د ګټې او سود د اصولو تر اغېزې لاندې وي، جوړه کړو،

بیا به هم موږ ټول جنګونه او شخړې محدودې نه کړو خو موږ به د اهدافو
پر لور یوه لویه لار په ګډه وهلې وي.

# اووم څپرکی

## نه، زموږ په نوم نه

***متحده ایالات د جنګ ضد فعالیتونو او پاسیفیزم یو اوږد تاریخ لري.***

دا یو اوږد تاریخ دی. دا همېشه د بریالیتوب تاریخ نه دی. د جګړې ضد غورځنګ یوازې ډېر لږ بریالیتوب لري، چې د جنګ په جوړوونکو باندې د اغېز کولو په برخه کې ډېر لږ بری لري، خو موږ په ډاډمنه توګه د امریکا له انقلاب څخه تر ننه پورې د جګړې پر ضد یو کورنی غورځنګ درلود. دلته د امریکا په پوځ کې د افسرانو پر ضد د سربازانو یو سرغړاوی موجود و. دا له جګړې سره د جنګي طبقې د خصلت په وړاندې سرغړاوی و چې د افسرانو له ناوړه چلند څخه د زړه بداوي په ترڅ کې راپورته شوی و.

کله چې د مکسیکو جګړه له ۱۸۴۶ نه تر ۱۸۴۸ پورې پېښه شوه، تاسو بیا هم د متحده ایالاتو له پوځ څخه تېښته ولیده. زیاتره خلکو چې په پوځ کې یې خدمت کاوه او د مکسیکو په جګړه کې ښکېل وو، هغوی وروستي ځای پر ځای شوي کډوال وو. د مکسیکو په جګړه کې یوه فرقه ټول ایرلینډی کډوال وو. همدارنګه ډېر ژر دغه سربازان په جګړه کې داخل شول، هغوی ګډوډي ولیده او زیات ناخوښي شول. په حقیقت کې د هغوی یو شمېر مکسیکو ته غاړه واړوله او هلته یې د سان پاتریکو San

Patricio فرقه جوړه کړه چې د Battalion St Patrick s په نامه یادېده. اوس هر کال مکسیکویان د دغه قهرمانۍ نمانځنه کوي.

کورنۍ جګړه خو نوره هم پېچلې وه، ځکه چې دا دواړه هم د مریيتوب پر ضد او هم د شمال د اقتصادي لاسبري په وړاندې جګړه وه چې دې جګړې هېواد د اقتصادي ګټې په لور په یوه ګټور مارکیټ بدل کړ، خو له دغه اخلاقي عنصر سره جګړه، په عین حال کې د مریيتوب له عنصر سره جګړه د ټولې کارګرې طبقې له خوا ملاتړ کېدونکې جګړه نه وه، ځکه چې هغوی د طبقې خصوصیت را پاراوه. مَړُو او بډایو کسانو کولی شول چې د درې سوو ډالرو په بدل کې له جنګ څخه ووځي. دا د پاڅون اساسي ریښه وګرځېده چې په ۱۸۶۳ کال کې په نیویارک او څو نورو ښارونو کې پیښ او د امریکا په تاریخ کې د ځینو سترو کورنیو پاڅونونو سبب شو.

***او وروسته مو د امریکا هسپانیا جګړه درلوده.***

هو، عام ولس د هسپانیا پر ضد را وهڅول شو. داسې دروغ خپاره شول چې ګواکې د U. S. S ماین Maine چې د هاوانا په بندر کې وچاودېده، د هسپانیا له خوا چول شوی و. هېڅ چا پوښتنه ونه کړه چې په کیوبا کې دغه بېړۍ د څه لپاره وه، خو دا د جګړې لپاره یو دلیل شو. «په هر حال، کلونه وروسته دا روښانه شوه چې د ماین بېړۍ چاودنه د هغه د ماشین د خرابۍ په اثر ترسره شوې وه.» خو جنګ ډېر لږ وخت ونیوه او په دغه مهال د جګړې ضد غورځنګ ته ډېر وخت نه و چې پرمختیا ورکړل شي. خو د هسپانیې د امریکا ترمنځ جګړه چې ډېره ژر یې په فلپاین کې په

جګړې سره دوام وموند، کلونه کلونه وخت يې ونيوه او د جګړې ضد غورځنګ په کې پرمختګ وکړ. Mark Twain د ځينو نورو فوق العاده يا ايليت امريکايانو امپرياليستي ضد ليګ جوړ کړ. ځينې تور پوټکي سربازان د فلپاين دښتو ته واستول شول او ان بلې خوا ته ولاړل چې د فيليپينو سره وجنګېږي ځکه چې هغوی احساس کاوه چې دغه تور پوټکي د سپينو افسرانو په نسبت ډېر زيات اړيکي لرل.

***تواين د متحده ايالاتو د امپرياليزم او فلپاين ترمنځ د جګړې په باب يوه انتقادي مقاله ليکلې وه.***

هو، تواين ځينې ډېرې فوق العاده ټوټې ليکلې وې. د هغو يوه ليکنه «د جنګ دوعا نومېږي» په دې ډول:

«او خاونده خدايه! له موږ سره مرسته وکړه چې د هغوی سربازان پخپلو سفرونو کې ټوټې ټوټې شي.

له موږ سره مرسته وکړه چې د هغوی کروندې د هغوی د هېوادپالو په رنګ بايللو مړو و پوښو.

له موږ سره مدد وکړه چې د هغوی د ټوپکو غرمبهار د هغوی د دردمندو ټپيانو په کريکو سره چوپ کړو.

له موږ سره مرسته وکړه چې د هغوی کوچنوټې جونګړې، د اور په توفان سره په کنډوالو بدلې کړو.

له موږ سره مرسته وکړه چې د هغوی د بې دفاع مېرمنو زړونه د بې ځايه غمونو په منګولو کې وزمولو.

له موږ سره مرسته وکړه چې هغوی له چت (بام) نه بې برخې کړو، چې کوچني ماشومان يې د مرستې لپاره هېڅ مرستندوی ونه لري

او په خپل کنډواله هېواد کې په زړو او شلېدلو کالیو کې وږي
تږي او نهر شي.»

### *د لومړۍ نړیوالې جګړې په وخت کې په ډېر پیاوړي ډول د جګړې ضد غورځنګ راپورته شو.*

هو! په لومړۍ نړیواله جګړه کې هغه وخت د جګړې پر ضد یو ډېر لوی او پیاوړی غورځنګ موجود و، سره له دې چې دولت پری فشارونه واردول. ان تر دی چې د دویمې نړیوالې جګړې پر مهال موږ ولیدل چې خلکو د جګړو پر ضد خبرې کولې. دغه راز له کورنۍ جګړې سره دویمې نړیوالې جګړې یو اخلاقي عنصر درلود، ستونزه دا وه چې د انګېزې له مخې د خلکو د تنظیم شویو هڅو څخه چې د جنګ لپاره یې تیاری نیوه، څنګه ځان وژغوري. هو، موږ غوښتل چې له هتلر او فاشیزم سره مبارزه وکړو. موږ د یهودیانو او نورو عامو خلکو د وژنو شاهدان وو. خو دا ټول شیان د نورو ډېرو لړو لوړو شیانو سره ګډوډ دي. دا د هغو اروپايي قوتونو غوښتنه ده چې پخپله پراختیا غوښتونکي او ډېر ظالم دي او غواړي ټوله نړۍ خپله مستعمره کړي. دوی جرمني او جاپان له هغو سیمو بهر کړل چې دوی غوښتل هغه کنترول کړي. په متحده ایالاتو کې یو کوچنی لړه کي په دې پوه شول او اعتراف یې وکړ او له جګړې سره یې مخالفت وکړ. دغلته له دویمې نړیوالې جګړې سره ښي لاسي ګوښي شوي او تجرید شوي وو او ځینې یې ان د نازي پلویان وو، خو بلې خوا ته یې پاسیفیستان وو، خو د دې لپاره چې په دویمې نړیوالې جګړې کې یې له ګډون سره مخالفت کاوه، نژدې شپږ زره امریکایان زندان ته لاړل.

دویمه نړیواله جگړه لا تر اوسه د امریکایانو په ذهن کې د «ښې جگړې»
په توگه پاتې ده. تر اوسه لا خاطرې ستونزمنې دي. په هیروشیما او
نگاساکي باندې بم غورځوي او د سلگونو زرو تلفاتو د مطلب افشا کېدل
چې موږ په درسدن باندې په بمباریو کې ولیدل چې په سلگونه زره کسان
له منځه لاړل او دا حقیقت چې موږ په عامو وگړو باندې په بې رحمانه بم
غورځولو کې ښکېل وو "دا ښه جگړه وه"، خو پرته له دې چې په نړۍ
کې راسیزم، دیکتاتوري او یرغلونه محدود کړي او مخه یې ونیسي. هتلر
جاپان او موسولیني له منځه لاړل خو موږ اوس دوه زبرځواکونه لرو. دواړه
اوس هستوي وسلې لري چې د نړۍ د بېلابېلو سیمو د کنترول لپاره سره
جگړه کوي.

ما ویلې وو چې دا د جگړې ضد غورځنگ لپاره چې په امریکایي تگلاره
باندې کومه واقعي اغېزه وکړي، ډېره لږه ده، خو د ویتنام مثال یو استثنایي
حالت و. د ویتنام په جگړه کې د امریکا خلکو زیات او پوره وخت تېر
کړ چې ویې لیدل چې د حکومت له تېرایستلو نه وروسته د ویتنام په
خلکو باندې، په هغو ظالمانه اعمالو پوه شول چې دوی مرتکب شوي وو.

د لومړي وار لپاره د جگړې ضد یو پیاوړی غورځنگ رامنځته شو چې ان
د دولت په تگلارې یې اغېزه وکړه. زیاتره جي آی اس GIS (د متحده
ایالاتو ملیشه پوځ) د ویتنام د پلویانو په څېر د جگړې پر ضد و درېدل او
سازمانونه یې ایجاد کړل، خو کله چې په ۱۹٦٦ کې د امریکا د خلکو دوه
په درې چې د جگړې ملاتړ یې کاوه، د ۱۹٦۹ پورې تقریباً دوه په درې د
جگړې مخالف شول، دا یو دراماتیک بدلون و.

تاسې کولای شئ چې دا مطلب د حکومت په کورنیو یادښتونو کې

ولولئ. که تاسې د پنتاگون هغه پاڼې چې باید د امریکا خلکو نه وای لیدلې، خو په ۱۹۷۱ کال کې د کورنۍ نافرمانۍ د قانون پر اساس افشا شوې، له هغو څخه کولی شئ، چې له جگړې ضد غورځنګ څخه د ادارې د وېرې او ترهې جاج واخلئ. حکومت، په خبره پوه شوی و چې څومره ستونزه وه چې څرنګه له دې ټولو خنډونو سره جګړه پر مخ لاړه شي. له جګړې سره د عمومي مخالفت تردېدیه یا د ردولو پاڼه د کاغذ پر مخ راغلې وه او د ROTC څېرکي تړل کېدل. همدارنګه دوی په ۱۹٦۷ او ۱۹٦۸ کال کې په بېلابېلو ښارونو کې د تورپوټو له پاڅون څخه وېره درلوده. سره له دې چې دغه خوځون د جګړې ضد غورځنګ له خوا نه لارښود کېده، خو یو ډول اړیکې یې ورسره درلودلې. په ویتنام کې د جګړې دوام او پر مختګ په متحده ایالاتو کې د تورپوټکو سیمو د خلکو له حالت څخه دې ډول سترګې پټولو مانا درلوده او د دې رابطه د مارټین لوټر کینګ له خوا روښانه او د خلکو ذهنونو ته ورسېده. همدارنګه د ویتنام د جګړې په خوا کې موږ لومړنی جګړه ضد غورځنګ ولیده چې په پوره اندازه پراخ او پیاوړی شو. تر هغه چې د حکومت په سیاست یې اغېزه وکړه. په دې ډول حکومت له دی جګړې څخه درسونه واخیستل، په دې ډول که غواړئ، چې جګړه پر مخ بوځئ، نوژر تر ژره باید د جګړې ضد غورځنګ له راپورته کېدو څخه دمخه جګړه پای ته ورسوئ.

***تاسې ولیکل چې د ویتنام له جګړې سره مخالفین له ډېرو کوچنیو لېږه کیو څخه راپورته شول او وروسته د سخت او له زغم نه ډک کارکولو په یو ملي او اغېزمن غورځنګ بدل شو. د دغه تاریخي مثال په رڼا کې د نن ورځې د جګړې ضد غورځنګ څرنګه کتلی شئ؟***

په څرګند ډول دلته د جګړې پر ضد یو لړ شیان پیل شول، مخکې له هغه چې بمباري پیل شي، تر مخه موږ په جګړه کې وو، خلکو په تبلیغ او پوهولو، د مظاهرو لپاره د لیکو په جوړولو او داسې نورو کارونو پیل کړی و. د ویتنام په شرایطو کې دې کارونو ډېر زیات وخت ونیوه چې بالاخره پر مخ ولاړ. زما د ۱۹۶۵کال هغه پسرلی په یاد دی، کله چې په ویتنام باندې لومړنۍ ستره بمباري پیل شوه. موږ د جګړې ضد غونډه جوړه کړه چې په بوستون کامون کې وه، په هغه کې سل کسه را ټول شوي وو، په دې تېر سپټمبر کې ان مخکې له هغه چې په افغانستان باندې بمبارۍ پیل شي، موږ د بوستون په کوپلی سکوایئر کې غونډه وکړه، په دغه غونډه کې زر کسه راټول وو. زر کسو نورو په سان فرانسسکو، نیویارک سیټي کې د جګړې ضد مظاهره وکړه خو دغه شېبې په یقیني توګه د ویتنام د جګړې په نسبت ډېر ژر پیل شوې.

***یو شمېر خلک چې د بوش د مشرتابه اداره ترې جوړه ده، هڅه کوي چې په دې جګړه کې د ویتنام په مثال ډېره کېږدي، چې د متحده ایالاتو پوځیتوب ته مشروعیت ورکړي.***

د ویتنام مثال یوه ډېره په زړه پورې پدیده ده. فرض کړئ یا داسې و انګېرئ چې د ویتنام مثال په دې اساس ډېر غوره دی چې موږ د یوې اوږدې مودې لپاره په ویتنام کې جګړه وکړه. چې هغه وروسته په ډېر ناوړه جنګ بدل شو او د امریکا خلکو یې هېڅ ملاتړ ونه کړ. په نتیجه کې د امریکا حکومت اړ شو چې په ناګاره شرمناک ډول سره ووځي، خو نه په څرګنده توګه چې ګویا په دې پرېکړه چې اجازه نه ورکوي چې دا ناکامي بیا تکرار شي او د امریکا د امپراتورۍ کمزوري دې وګڼل شي. خو د ویتنام مثال په یوه داسې خوله په خوله مثال بدل شو چې ډېره وېره پیدا

شوه چې د امریکا خلک به یې ملاتړ ونه کړي. زه فکر کوم چې د ویتنام ترهه لاتر اوسه پر ځای ده. امریکایان په عمومي ډول جګړې ته له تګ نه انکار کوي. تر هغه وخته چې جمهور رییس اقدام وکړي او میډیا هم په دې اړوند خپرونې وکړي او داسې یوه فضا یې رامنځته کړې چې جګړه په کی توجیه کړي.

نیویارک ټایمز په یوه مقاله کې دا پوښتنه مطرح کړې وه: «متحده ایالات به په یوه بل ویتنام (افغانستان) کې ښکېل شي؟ همدارنګه ټایمز د دې خبرتیا په اړوند چې امریکا افغانستان ته نور سلاکاران لیږي، ده یوه پخواني افسر چې په ویتنام کې یې د امریکا په سفارت کې کار کاوه یو لیک خپور کړی و. نوموړي په لیک کې دا پوښتنه راپورته کړې وه چې آیا اوس موږ د ورته چال او نیرنګ سره مخامخ نه یو تر هغه وخته پورې موږ په افغانستان کې د جګړنو عسکرو نور شپږ رقمه شمېر (یا په سلګونو زره) درلودل چې په غارونو کې پلټنې کوي. ښایې چې دا به سره ورته مثالونه او فشارونه وي؟ خو اوس د متحده ایالات هلته "سلاکاران" چې د متحده ایالاتو د هغه پنځه اتیا کسیزه روزل شوې ډلې په ګډون دي چې د فلپاین په اسلامي عملیاتو او شخړه کې یې ګډون درلود. The Boston Globe لیکلي وو: «هغو امریکایانو ته چې په ویتنام کې د امریکا د جګړې اصالتونه ورپه یاد دي، په هغو کې داسې څه شته چې سړی پرې خپل باور له لاسه ورکوي لکه دا چې پنتاګون ۱۶۰ تنه پوځي سلاکاران د فلپاین له وسله وال پوځ سره د مرستې لپاره استوي چې د ابو سیاف په رادیکاله اسلامي ډله باندې غلبه حاصله کړي.»

خو د ویتنام له جګړې نه ډېر ژر او سملاسي وروسته د متحده ایالاتو حکومت هڅه پیل کړه چې د ویتنام په باب فوق العاده حالات محدود

کړي او هڅه يې وکړه چې يو وار بيا د جګړو داسې طرح جوړه کړي چې څرنګه چې له دويمې نړيوالې جګړې څخه وروسته د ډېرو خلکو لپاره نوره جګړه د منلو وړ نه وه خو حکومت دې ته اړ و چې داسې څه وکړي چې يو وار بيا جګړه د منلو وړ شي.

په حقيقت کې ډېر کلونه وشول چې د ويتنام جګړه پای ته رسېدلې ده، خو متحده اياLاتو داسې پوځي کارروايي پيل کړه چې خپل قوت نور هم وپړسوي او پياوړی يې کړي. له لومړيو فرصتونو څخه يو د ميګويز Mayaguez يوه کوچنۍ موضوع وه چې اوس د امريکا په تاريخ کې يوه هېره شوې پېښه ده. د ويتنام له جګړې وروسته د ۱۹۷۵ کال په مې کې کمبوديا يوه امريکايي سوداګريزه بېړۍ Mayaguez د هغې له کارکوونکو سره توقيف کړه. د امريکا د دغې کوچنۍ سوداګريزې بېړۍ په اړه چې د کمبوديا له خوا توقيف شوی وه، د کمبوديا حکومت وويل چې بېړۍ د هغوی په اوبو کې ګرځېده او هغوی د دې حق درلود چې توقيف يې کړي، متحده اياالاتو سملاسي په عمل لاس پورې کړ. سره له دې چې هېڅ داسې شواهد موجود نه وو چې کمبوديا دې د بېړۍ له کار کوونکو سره ناوړه چلند کړی وای.

جيرالد فورد جمهور رييس و. هنري کيسينجر د هغه سلاکار و. کله ناکله داسې ويل کېدل چې دوی بايد ځينې داسې کارونه وکړي چې په نړۍ کې خپل اعتبار او حيثيت راژوندی کړي. کسينجر تل حيثيت او اعتبار په پوځي فوق العاده ګۍ کې ليده. متحده اياالاتو سملاسي يو کمپاين پيل کړ، د دې لپاره چې د Mayaguez کار کوونکي آزاد شي. دوی جنون واخيستل او کوچنی ټاپو ټانګ Tang Island يې بمبارد کړ. په تېروتنې سره داسې ګومان کېده چې هلته د بېړۍ کار کوونکي ساتل شوي وو.

کېدای شي دا پوښتنه رامنځته شي چې «د څه لپاره تاسې هغه ټاپو چې فکر کوئ د بېړۍ کار کوونکي په کې بنديان دي، بمباري کوئ؟»

وروسته د متحده ایالاتو پوځي بېړۍ نوموړی ټاپو ونیو، په عین حال کې د نیول شوې بېړۍ چلوونکي په لاره کې وو، او آزاد شوي وو، د کمبوديا حکومت لا د مخه د بېړۍ کار کوونکی آزاد کړي وو، خو امریکایانو د Tang ټاپو اشغال کړ، څلوېښت تنه امریکایان په کې ووژل شول.

په څرګنده توګه دا د پوځي لاس‌وهنې یو احمقانه ډول و چې وښودل شو او څرګنده یې کړه چې متحده ایالات لا تر اوسه یو ستر ځواک دی او هر څه کولې شي، ویې کړي، که کمزورې ګواښوونکې کمبودیا د یوه ستر ځواک نمونه هم وي.

وروسته موږ نور تکلونه درلودل چې د ویتنام مثال ورته ویل کېده، لکه جمهور رییس ریګان چې د خپلې واکمنۍ په لومړیو کلونو کی ګرینادا اشغال کړه. د خندا وړ خو دا ده چې تاسې یو کوچنی ټاپو چې کولی شي امر ورته وکړئ، خو ناوړه سلوک ورسره کوئ. موږ په ګرینادا کې له ډېرو نیرنګونو او عذرونو کار واخیست، چې غلط جوت شول.

د خلیج جګړه یو ډېر جدي تکل و چې د ویتنام ناوړتیا سپینه کړي. دا د Mayaguez د پېښې یا د ګرینادا د اشغال پر خلاف، د خلیج جګړه په بشپړه مانا یو پوځي تېری و.

حکومت ستر کړاوونه وزغمل چې ډاډمن شي چې د دې نتیجه د ویتنام د جګړې په څېر نه وي چې د جګړې ضد غورځنګ رامنځته کړي. همدارنګه واقعاً چې عراق پنځمه درجه (Fift - Rate) پوځي قوت و، د متحده ایالاتو حکومت د عراق د پوځي پیاوړتیا په باب په تبلیغاتي

کمپاین کې چې طرح شوې وه، زیاتی کاوه او داسې یې ښووله چې صدام حسین واقعاً یو بې مثاله او سرسخته دوښمن دی، که موږ عراق لاندې کړو، نو موږ به یو مهم کار کړی وي. د بوش اداري ځان ډاډه کاوه چې مطبوعات اجازه نه لري چې هر هغه څه چې پېښېږي، ویې ویني، ځکه چې د دې لپاره دوی د ویتنام جګړې وېرولي وو چې مطبوعاتو هغه ظلمونه چې موږ عملي کول، خپرول. وروسته دوی پرېکړه وکړه او ویې ویل چې موږ اړ یو چې ډېره ژر دا جګړه پای ته ورسوو. خو د هوایي حملو یا کمپاین نه وروسته او د لنډمهالې ځمکنۍ حملې په اثر عراقي پوځ ډېر ژر مات شو او بیا متحده ایالاتو د بري اعلان وکړ.

کله چې متحده ایالاتو عراق لاندې کړ، له هغه وروسته بوش په خاص ډول سره په یوه رادیویي وینا کې وویل: «د ویتنام د جګړې کرغېړنې پېښې نورې د تل لپاره د عربي ټاپو په شګلنو دښتو کې ښخې شوې.» دا د جمهور رییس له خوا یو ډېر عالي او شاعرانه بیان دی. خو داسې فرض کړئ که د ویتنام د جنګ نښې نښانې ښخې شوې دي، نو د امریکا خلک به په کومه مانا جګړه ومني. زما په فکر په دې برخه کې ځینې حقایق شته او هغه دا چې د امریکا خلکو د خلیج د جګړې ملاتړ وکړ. دا وخت په ۱۹۹۱ کې د ویتنام له جګړې څخه پنځلس کاله واټن موجود و، د امریکا خلکو په عمومي توګه په دې پروپاګنډونو باور کاوه چې موږ د کویټ د ساتنې لپاره جګړې ته ورګډ شو. خو موږ په واقعیت کې د دې اجازه نه درلوده چې د عراق پر ضد د امریکا د جګړې شا ته د واقعي پېښو اټکل وکړو. موږ اجازه نه درلوده چې په هغه څه باندې چې د چا خبره له کویت سره خواخوږي نومېږي پرې غور وشي. موږ ته اجازه نه وه چې په تېلو فکر وکړو. کله چې بوش ته د عراق پر ضد د جګړې واک ورکول کېده

د هغه د مشروعیت لپاره په مشرانو جرگه یا سنا کې خبرې وشوې. ځینې ځوانو شخصیتونو به په گوښې توگه بدې ردې ویلې او ویل به یې چې «د تېلو لپاره وینې مه تویوئ.» البته چې اعتراض کوونکی سملاسي له سنات مخه بهر تېل وهل کېدل. د امریکا خلک باید داسې گومان ونه کړي چې تېل د جگړې بنسټ دی. هو، د امریکا اکثرو خلکو دا باور درلود چې اداره په دې اړتیا باندې بحث او خبرې اترې کوي چې څرنگه د صدام د دیکتاتورۍ پر ضد عمل وکړي او په دې اساس بوش ځینې داسې بنیادونه درلودل چې ووایي د ویتنام نښه نښانه اوس ښخه شوې ده. خو زه هېڅ فکر نه کوم چې دا به په بشپړه توگه سمه وي. زه فکر کوم چې اوس هم د امریکا په خلکو کې د ویتنام یادونې او خاطرې ژوندۍ دي چې لیرې غورځول کېدای نه شي. خو کله چې موږ په جگړه کې ښکېل شو، نو هر وخت دا پوښتنه راولاړېده: «ایا دا به یو بل ویتنام وي؟» دا پوښتنه په مطبوعاتو کې نه راپورته کېږي او خلک په دې اړوند فکر نه کوي.

زما په فکر ابراهام لینکلن په حقه و چې ویلی یې وو: «کېدای شي ځینې خلک ځینې وختونه تېرایستل شي او ځینې خلک د تل لپاره تېرایستل شي خو نه شي کېداي چې ټول خلک د تل لپاره تېرایستل شي. په جنوب کې د توریپوټکو لپاره او د عامو وگړو لپاره چې څه پېښېدل د متحده ایالاتو خلک راپورته شول او د عامو وگړو غورځنگ په یوه ملي غورځنگ بدل شو.

دا چې په ویتنام کې څه تېرېدل خلک راپورته شول او د جگړې ضد یو ستر غورځنگ یې ایجاد کړ. خو داسې فکر مه کوئ چې دا په دې خاطر ده چې گوندې رایې یا ووټونه شماري یا دا چې په خبرونو لنگر اچوي، بلکې دوی غواړي خپله لاره پر مخ بوځي او خلک د تل لپاره تېرباسي.

## د بوش وړل یا بری څومره اهمیت لري؟

له هر څه مهمه دا ده چې که خلک وغواړي له سیاست نه څه زده کړي، دا مهمه نه ده چې څوک په سپینه ماڼۍ کې ناست دی. مهمه دا ده چې هغه خلک چې په سړکونو کې ناست دي، په کافتریاوو کې ناست دي، په حکومتي سالونونو کې ناست دي، په کارخانو کې ناست دي. څوک اعتراض کوي، څوک دفترونه اشغالوي او څوک مظاهرې کوي. دوی دي چې راتلونکی ټاکي یا څه چې پېښېږي هغه ته ټاکونکی رول ورکوي.

د سترې محکمې پرېکړې د ښوونې او روزنې پر ضد د براون په قضیه کې چې ګوښي خو برابر اصول وو له منځه یووړل چې د ایزنهاور د ادارې پر مهال رامنځته شوي وو.

نوموړی د جمهوري غوښتونکو د مسئولیت پر مهال د سترې محکمې قاضي القضات شو چې جمهوري غوښتونکي له دموکراتانو سره په ستره محکمه کې یوځای شول. دا ولې پیښ شول؟ آیا د سترې محکمې د غړو په مغزونو یا اذهانو کې سملاسي کومه رڼا خپره شوه؟ آیا هغوی سملاسي داسې ګومان وکړ چې «واه، خدایه موږ څوارلسم بدلون په غلطه توګه تفسیر کړی و؟» نه یوازینی دلیل چې دغه څه په ۱۹۵۴ کال کې واقع شو دا و، چې د سترې محکمې خواوشا نړۍ بدلون کړی و. په ۱۹۵۴ کال کې چېلا د ولسي حقوقو غورځنګ په پراخه پیمانه نه و پیل شوی، دا په راتلونکي کال کې وه، موږ د مونتګمري بس بایکاټ درلود او څو کاله وروسته موږ اعتراضونه درلودل ( sit- in ) چې په سهیل کې د غورځنګ زړه و، هلته لا د مخه ناخوښي موجوده وه. د سترې محکمې په وړاندې د

ګوښیتوب مخالفت کوونکي پنځه مختلف کیسونه راوړل شول، چې د ښوونې او روزنې پر ضد د BrownV. Board کیس یو له دغو پنځو هغو څخه و. تورپوټکو په سهیل کې په بېلابېلو ځایونو کې له دغه ګوښې والي سره مخالفت وکړ، هغوی خپل ژوند له خطر سره مخامخ کړ. په سهیلی کارولینا کې د کلاریندون ښارګوټي کې Reverend Joseph Delain له ښاره وویستل شو، ځکه چې نوموړي د ښوونځي له ګوښیتوب سره مخالفت کړی و. د نوموړي کلیسا وسوځول شوه او اعلان وشو چې نوموړی له عدالت څخه وتښتېد.

دا یوه نمونه وه. خلک دوزخ ته رهي شول، دا شیان په ټول هېواد کې پېښ شول، خو که چېرې د هغوی دغه مقاومت نه وای د براون کیس او نور کیسونه به سترې محکمې ته نه وای وړاندې شوي.

په عین حال کې متحده ایالات په سړه جګړه کې له شوروي اتحاد سره په درېیمه نړۍ باندې چې له سپین پوټکو بهر نړۍ ده، د نفوذ لپاره په رقابت کې ښکېل وه. تر ۱۹۵٤ کال پورې دا د امریکا د متحده ایالاتو لپاره ډېره د اهمیت وړ وه چې د درېیمې نړۍ هېوادونو ته له ځینو لارو چارو څرګنده کړي چې دا د نژادي تجرید په اړوند یو لړ کارونه وو او په دې هکله د متحده ایالاتو لوی څارنوال د ښوونې او روزنې د بورد پر ضد د براون په قضیه بحث وکړ او ویې ویل چې محکمه به دا په پام کې ونیسي چې په بهر نړۍ کې څه پېښېږي او متحده ایالاتوته په بهر کې په کومه سترګه کتل کېږي. لوی څارنوال General Herbert Brown Del له سترې محکمې وغوښتل چې نژادي تجرید بند کړي ځکه چې دا د کمونیستي پروپاګندې ماشین د فعالولو لپاره لا ښه بهانه ده.

په بل عبارت دا ټول په بهرنۍ او کورنۍ سطحه هغه فشارونه دې چې ستره محکمه او حکومت ته لورې ورکوي، دا يوه ساده مسأله نه ده چې قاضي خپل ځان له نړۍ پټ کړي. د قضا په څوکۍ کښېني او د قانون اساسي لغات په بيا بيا سره ولولي، تر هغه چې ځينې شيان ورته روښانه شي. د هغوی ذهن د هغو شيانو پر اساس چې په نړۍ کې د دوی پر محور څرخي، ډېر واضح دی.

### ***تاسې زياتره وخت د نورو کينېلاسو ليکوالو په نسبت ډېر خوشبينه مالومېږئ.***

زما په فکر دا چې څوک خوشبينه وي يا بدبينه، په دې پورې اړه لري چې څه ويني. موږ په يوه ډېره پېچلې ټولنه کې ژوند کوو. له تلويزيون او ډله ييزو وسايلو څخه په زرگونه او زرگونه مسايل ستاسې تصوراتو ته راځي. دا ټول شيان د مطبوعاتو له لارې جوتېږي. تاسې ليدلی او کتلی شئ، چې زياتره دغه تصورات تاسې په ډېر مهمو خلکو کې ليدلی شئ. هغه څه چې تاسې يې په ورځپاڼو کې وينئ، چې جمهور رييس څه وايي او دا چې د دولت سکرتر او ياد دفاعي چارو سکرتر پرون څه وويل او داسې نور په مطبوعاتو کې وينئ. که چېرې تاسې د پرتله کړئ چې څومره پاملرنه ورته شوې ده چې حکومت په رسمي توگه څه کړي، له هغه سره پرتله کړي چې عادي خلک څه کوي، نو په دې کې تاسې يوه لويه تشه وينئ. خو که چېرې تاسې دا تصورات په تلويزيون کې مهم رانگيرۍ او هغه څه چې په ورځپاڼو کې يې لولئ او د ټولنې د نماينده په توگه يې فرض کړئ، نو ډېره زړه بدوونکې او خواشينوونکې ده، ځکه هغه څه چې

اوريځ چې روان حالت تائيدوي، تاسې داسې نښې نښانې نه اوريځ چې له دې سره مقاومت وښيي. خو په دې موده کې په زرگونه شيان پر مخ ځي. دا شيان په عامو مطبوعاتو کې هېڅکله منعکس شوي نه دي او نه خو په ټولو جمعي ارتباطي وسايلو او ميډيا کې منعکس شوي دي. د ټول هېواد په ښارونو او مرکزونو کې اوس د زياتې اندازې انرژۍ شواهد شته. د هغو خلکو انرژي چې ځينې کارونه کوي او له نورو وگړو سره د مرستې وړتيا لري. دلته په هېواد کې په زرگونه داسې سازمانونه شته چې د نژادي برابرۍ، د ښځو د حقوقو او چاپيريال د ساتنې لپاره او د پوځي توب ضد کارونه کوي، خو هغه کارونه چې دوی يې کوي، په تلويزيون کې نه څرگندېږي.

دلته يو ډول فرهنگي تناقض موجود دی. دلته د ټولنو يا ډلو ورځپاڼې دي او په يو ډول حيرانوونکي شمېر سره په هېواد کې نورې بديلې ورځپاڼې دي او د کتابونو پلورنځي دي. خو که چېرې تاسې له هغو خبر ياست او که چېرې ورته پاملرنه وکړئ او ځان ته د دې اجازه ورنه کړئ، چې د دغو تصوراتو د اثر لاندې راشئ چې په واشنگټن ډي سي کې دومره ستر نه دي، نو کولی شئ، په دې هېواد کې د بدلون لپاره د يو ستر ظرفيت احساس وکړئ.

***لکه چې زيات خلک خبرې کوي چې که چېرې د دې اوسني سيستم بديل نشته نو د طبقاتي سياست د لرليد په اړوند يا د سوسيالست سياست په اړوند چې پراخو پرگنو ته ورسېږي، څه فکر کوئ؟***

زه فکر کوم چې لس کاله د مخه د شوروي اتحاد په سقوط سره موږ ته ډېره ښه موقع په لاس راغله چې د سوسياليزم په اړوند نه دا چې د ستالينيزم

له بدنامۍ لیدتوګې، د پولیسي او زنداني کولو د حکومت له لارې مطرح وو، موږ کولی شو چې د سوسیالیزم نوې لیدتوګې ته راوګرځو، دا مفکوره له شوروي اتحاد څخه د مخه موږ ته په دې هېواد کې د دې خلکو لکه Jack London، Eugene Debs او Helen, Keller، له خوا راکړل شوې وه. دا د سوسیالیزم هغه لیدتوګه ده چې کولی شي خلکو ته د ساه ویستلو موقع ورکړي، چې په دې هېواد کې یې څو میلیونه خلکو د پیړۍ په بدلون سره ساه ورکړې ده، زه فکر کوم چې موږ د دې چانس لرو چې دا کار وکړو. دوی به زیات څه زده کړي، خو دا څرګنده ده چې خلک د حکومت په موسساتو باندې باور نه لري. Business Week چې اصلاً پرولتاریایي مجله نه ده، یو کال دمخه یې یوه سروې کړې وه، داسې څرګندوي چې خلک ډېر زیات د شرکتونو (کارپوریشنونو) څخه ناخوښي دي او په خاص ډول په سیاست باندې د هغوی له نفوذ څخه ډېر خپه دي. دغه شکایت یو ډول له ځانه پردي کېدنه جوتوي چې موجوده ده او د دې موقع شته چې خلکو ته نوي افکار څرګند کړي.

***بوش داسې وایي لکه څنګه چې جنګ اساسي لاره ده چې د دې هېواد خلکو پرې خپله آزادي ترلاسه کړې ده او خپلو حقوقوته یې پراختیا ورکړې ده.***

جګړو همېشه زموږ آزادي ویجاړه کړې ده. زموږ د آزادۍ پراختیا د جګړو په نتیجه کې نه وه او نه هم داسې چې حکومت څه کړي وي، بلکې دا د هغه څه نتیجه ده چې وګړو ترسره کړې. ډېر ښه مثال یې د متحده ایالاتو د تورپوټکو د تاریخ په باب دی. د مریيتوب او د ګوښیتوب

د تاریخ په باب دی. دا حکومت نه و چې د مریيتوب په وړاندې ودرېد. بلکې د سپینو او تورپوټکو د مریيتوب د له منځه وړونکو ډلو نوښت و. دا حکومت نه و چې په ۱۹۵۰ او ۱۹٦۰ کلونو کې یې د نژادي توپیر پر ضد مبارزه پیل کړه بلکې په جنوب کې د خلکو غورځنګ و، دا حکومت نه و چې خلکو ته یې آزادي ورکړه چې د ورځې د دولس ساعته کار پر ځای د ورځې اته ساعت کار وکړي. دا پخپله کارګران وو چې په خپلو اتحادیو کې تنظیم شول چې مظاهرې وکړي او له پولیسو سره مخامخ شول. حکومت په بل لوري کې و. حکومت تل د کارفرمایانو او شرکتونو ملاتړ کاوه. د کارګرو آزادي او د تورپوټکو آزادي هر وخت په دې پورې اړه درلوده چې د حکومتونو په وړاندې یې مبارزه کوله. خو که موږ په تاریخي لحاظ وګورو موږ په یقیني توګه په حکوموتونو پورې مربوط نه یو، چې زموږ آزادي تأمین کړي. موږ اړ یو چې په خپلو سازماني شویو هڅو پورې مربوط اوسو. د دې تاریخ یو بل درس دا دی چې تاسې هېڅکله فکر ونه کړئ، چې کولی شئ، په خپلو قانوني حقونو کې آزاد نه اوسئ، هېڅکله داسې فکر ونه کړئ، چې کولی شئ قانون ته ګوته ونیسئ یا دا چې اساسي قانون وایي: «وګورئ دا هغه څه دي چې ویل کېږي، نو ځکه دا هغه څه دي چې زه غواړم ویې لرم.» ځکه هر هغه څه چې اساسي قانون وایي او هر هغه څه چې مقررات یې وایې، هر هغه چا سره چې واک وي او هر چا ته چې واک ورکړل شوی وي، چې غواړې، که د کاغذ پر مخ حق لري او یا په حقیقت کې حق لري، دا زموږ په ټولنه کې یو ډېر عام حالت دی. خلکو د دې لپاره مبارزه وکړه چې قانوني حق ترلاسه کړي. دوی قانوني حق د کاغذ پرمخ ترلاسه کړ او وروسته د قدرت واقعیت او سرمایه صحنې ته راغله او د هغوی قانوني حق مانا له لاسه

ورکړه. په دې ډول تاسې اړ یاست چې د هغه د واقعي کولو لپاره مبارزه وکړئ.

### ***تاسې د Fontamara د ناول Gnoziosilone 's د دې نقل قول چې وايي ډېر خلک اوس پوښتنه کوي چې «موږ څه وکړو؟» ډېر مينه وال ياست؟***

هو، د Che Fare (اغلب گومان چې ایټالوی لفظ دی) هغه پوښتنه، د یوه ایټالوي بزگر له خوا د Silone's په ناول کې شوې. زما په فکر یو شي چې موږ یې په سمه توگه کولی شو، د کارگرو خلکو او د کارگرانو د حقوقو څخه د ملاتړ ترمنځ چې چېری امکان ولري اړیکي جوړ کړو.

په ټول هېواد کې په هر مناسب وخت کې د کارگرانو په مبارزو او مظاهرو، په روغتونونو کی د نرسانو په اعتصابونو کې، دښوونکو په اعتصابونو کې چې رپوټونه یې په مطبوعاتو کې نه دي خپاره شوي، خلک ورسره مخامخ دی، زیاتره داسې شوی دي. خلک فکر کوي چې دا کار نرسانو ته یوه ستونزه ده. یا دا ښوونکو ته یوه ستونزه ده. خو زما په فکر مهمه دا ده چې د ټولنې د پیوستون مفکورې ته پراختیا ورکړو. زما په فکر د اقتصادي عدالت د تأمین لپاره هر ډول اقدام کېدای شي، یو داسې سود دی چې په ظالمانه توگه په ټوله ټولنه کې پراختیا ومومي. وروسته موږ اړ یو چې د دې مسایلو ترمنځ ارتباط پیدا کړو. دلته په کارگرانو باندې حملې، فشارونه، د کارپوریشنونو له خوا مالیه نه ورکول، یا زموږ په ملکي آزادیو حمله جنگونه، ټول، زموږ د مالیو یا ټکسونو له لارې تمویلیږي او معاش خوري. موږ زیات کار ترسره کوو. موږ ټول ښوونکي یو، ارتباطي

کار کوونکي يو، موږ ټول سره اړيکي لرو، سره ګاونډيان يو، يو ځای کار کوو، ټولو ايډيټورانو ته ليک لېږو. کولی شو لاريون تنظيم کړو. کولی شو په عمومي نافرمانۍ کې ګډون وکړو. مظاهره او بايکاټ وکړو. موږ ټول کولی شو کله چې اړه وه د امريکا په تاريخ کی ملي غورځنګ جوړ کړو چې حکومت ته ووايي: «نه، تاسې زموږ د ارادې ممثل نه ياست، تاسې دا زموږ لپاره نه ترسره کوي او نه يې زموږ په نوم کوئ.»

***اوس د بوش محبوبيت په سلو کې ۹۰ ته رسېږي او همدارنګه بوش د خليج د جګړې په پای کې و چې د هغه محبوبيت ډېر ژر سقوط وکړ او په ۱۹۹۲ کال کې يې کلينټون ته انتخابات وبايلل.***

موږ له دويمې نړيوالې جګړې راهيسې د ټولو جنګونو په اړوند چې موږ په کې جنګېدلی يو، په يو ډول مو د خلکو په عقايدو کې بدلون ليدلی دی. په يقيني توګه د ويتنام د جګړې پر مهال موږ د خلکو په عقايدو کې يو کلک او جدي بدلون وليد او وروسته بيا د نورو جګړو په لړ کې د يادونې وړ، د ګريناډا، پانامې، خليج، چې دا يو ډېر ضروری عکس‌العمل و. «د جمهور رييس ملاتړ او زموږ د عسکرو ملاتړ» مطرح و، خو دا ځواب ډېر ژر په لېونتوب بدل شو او خپل رنګ يې بايلود. ډېر ژر خلکو يو ډول پاڅون تنظيم کړ، شاوخوا يې وکتل او په ورو ورو يې په دې سر خلاص شو چې هلته يوازې بېوزلي وګړي وژل شوي او هېڅ شی په واقعيت کې بشپړ نه و.

په ۱۹۸۹ کال کې د پاناما له اشغال څخه د ملاتړ کولو اړتيا په دې بنسټ وه چې موږ په ناسمه توګه د يو ګنګ مفهوم Manuel Noriega پسې

ورتللو، ځکه هغه نشه يي توکو د سوداګرۍ يو مسئول مثال و. دا له دې سره ورته ده لکه اسامه بن لادن چې د يو فرد په توګه د ترهګرۍ مسئول دی. نسبت دې ته چې يوه لويه ستونزه په نظر کې ونيسي، دوی يو شخص تر څار لاندې نيولی ځکه چې ډېر ه ستره ستونزه د حکومت د دغه تګلارې په اساس چې اوس ترې کار اخلي، د حل وړ نه ده. لکه څنګه چې دوی داسې هيلې درلودې چې د نوريیګا په ترلاسه کولو به يوه اندازه محدود اهداف ترلاسه کړي، البته دوی هغه ومونده، هغه يې بندي کړ، خو د نشه يي توکو سوداګرۍ دوام وکړ. په حقيقت کط د نشه يي توکو سوداګري لا پسې زياته هم شوه.

خو په هر حال زه هيله لرم چې موږ به په کې له بوش څخه په سلو کې له نوی (۹۰) ملاتړ څخه – خو نه شم ويلې چې څومره ژر به دا کار وشي – کمښت ووينو چې په ميډيا کې يې د ادارې له خوا نمانځنه وشوه. زما په فکر موږ به د هغو کسانو د پرزېدلو پيلامه ووينو چې په مصنوعي توګه يې د امريکايي واک لوړ مقام ترلاسه کړی و او د بري اعلان يې کړې و. لکه څنګه چې شاوخوا ته ګورئ او پوښتئ، چې: «موږ څه کارونه ترسره کړل؟» زه فکر کوم چې د افغانستان د زرګونو قرباني شويو خلکو د ځورېدنې داستان اوس را برسېره کېږي. سره له دې چې د حکومت او عمده ميډيا له خوا مالومات کنترول کېږي. بالاخره دا حقايق رابرسېره کېږې او بيا به هم راڅرګند شي. په متحده ايالاتو کې په لږ اندازه داسې مالومات شته، خو دا وخت نيسي چې دغه مالومات د عامه افکارو بهير ته داخل شي. زه فکر کوم چې په دې برخه کې به د مسئالی د اخلاقي ارزيابۍ اندازه ګيري او جاج اخيستنه وي. خلک به دا حقيقت تول و ترازو کړي، دا چې دوی خپلو هدفونو ته نه دي رسېدلي. ان تر دې چې

محدود هدفونه چې اداري اعلان کړل، بلکې پر افغانستان د تېري او ګډوډۍ سبب شوي دي، کله چې يوه اخلاقي ارزونه ترسره شوه نو زما په خيال هغه وخت به موږ په تدريج سره د اداري د ملاتړ کمښت ووينو.

### *د بوش پر محبوبيت باندې د روان اقتصادي رکود يا کړکېچ د اغېزو په اړوند څه فکر کوئ؟*

روان بحران لا تر مخه په يو شمېر خلکو سيده اغېزه کړې ده، خو په دې حقيقت باندې، جګړې ته د زياتې پاملرنې په اثر پرې خاورې رااوښتې دي. د جنګ د جبهې له شا څخه خبرونه وايي چې د اقتصادي رکود اغېزې اوس په زياته پيمانه روښانه کېږي. په خلکو کې به دا مهم نتايج ولري، د بوش د اداري په وړاندې به ناخوښي راپورته شي او کېداى شي چې دموکرات ګوند په وړاندې هم ناخوښي راڅرګنده شي چې په دې ټولو مسايلو کې يې ډېر کوچنی حاکمانه رول درلود.
زما په فکر به د کاپيتاليستي سيستم ناکامي، نوره هم څرګنده شي چې د بنسټيزو ستونزو د حل په برخه کې يې لري. په دې موقع کې چې د بوش اداره نور ٤٨ بليونه ډالره د پوځ لپاره غواړي، د درملنې او روغتيايې چارو مالي امکانات (فوند) قطع کوي. د ښوونې او روزنې او د ماشومانو د روزنې او ساتنې لپاره پيسې نه ورکول کېږي، په ورځپاڼو کې داسې نوي رپوټونه چاپ شول چې بې کوره شوي خلک د ژمي د يخنۍ له کبله مري، کورنۍ نه شي کولاى چې د تودوخې يا تسخين بيل ورکړي. دا به نوره هم خلکو ته روښانه شي، چې د ملي پانګې غيرمسئولانه ضايع کول، په خاصه توګه، کله چې اساسي اړتياوو ته پاملرنه نه کېږي. په وروستيو

وختونو کې د ستر Enwn Corporaton سقوط په زرګونه کسان بېکاره کړل، پرته له دې چې د هغوی د تقاعد خزینه او روغتیایي خدمات په پام کې نیول شوي وي، د زیاتره منځني عاید ونډه لرونکو سماوي له منځه ولاړې، دا یوازې د دغه سیستم له کنترول څخه د بهر کېدو یوه نښه ده. داسې یو سیستم چې ګډې ګټې د ټولو ملاحظاتو نه لوړې بولي، په ځینو نقطو کې دا د ناکامۍ څرګندوی دی. زه نه پوهېږم چې دا به کله د امریکا اکثریت وګړو ته جوته شي، خو یقین لرم چې یو وخت به د امریکا خلکو ته په ډاګه شي. په داسې حال کې چې ناهیلي بربښي، خو زه په اوسنیو حالاتو کې هیله من یم، خو باید دا د اساسي عقیدې لپاره یو بنسټ وي. حقیقت دا دی چې د امریکا په خلکو کې یو ښه اخلاقي احساس شته چې پر مخ ځي، کله چې د پروپاګندونو ټغر ټول شي، زما په فکر به بیاځلي ارزونه وشي او هغه خلک چې بې موجبه رابلل کېږي، د جنګ غیر اخلاقي څېره به په ځینو برخو کې نوره هم بربنډه شي.

پای

**یادونې**

مننه له: دان سیمن اجور روګیرو څخه چې د دې پروژې ډېر مهم سیاسي مناسبتونه یې وکتل. په خاصه توګه له دان څخه چې باارزښته ایدیت او بیاکتنه یې وکړه او په دې اړوند یې مشوري راکړې. احمد شوکې چې د سوسیالیست ریویو ادیتور دی او د سوسیالست کارګرو څخه، الان ماس چې دې مرکو ته یې وهڅولم او د دې وعده یې وکړه چې دا مواد بیا دلته په آی اس آر او اس ډبلیو کې چاپ کړم. له ارنولد هاتي رای چې خبرې یې راپورته کولې، دیوید بارسامیان څخه له دې کبله چې دا یې ښووله چې له یوې پرته په نورو ډېرو لارو به څرنګه شي. له مارتین والکر څخه له دې کبله چې ساعتونه یې په کلماتو غور وکړ او با ارزښته وخت یې پرې تېر کړ. د میدویست د ښوونیز ګراپیک مرکز له مایکل ګالاګګر څخه له دې کبله مننه چې له ډېر لنډې یادداښت سره یې عالي نقشه تیاره کړه. له ګینانیف څخه له دې امله مننه چې د ادیتوریال په برخه کې یې مرسته وکړه. اشلي سمیت، ای یک الینبرګ او دان ګوسین چې له برلینګتون سره مرسته وکړه. ویرمونت تاک، ویرجینیا هارابین کلیف کارنر بالیتیک او بوک ستور او جاینګا سودیر برګ چې د عراق په اړوند خبرو اتر کې یې مرسته کوله. ایریک لاپورتا او د میلویا ایلوکیشن فوندیشن چې د جیانګ سن د مرکې وړې ټوټې د هووارد فیلم سره چې د میګویل پیکر له خوا جوړ شوی و، اجازه راکړه. د لیندا فورد چې الترناتیف رادیو د بګراوند مواد یې راکړه، نیتا لیویسون چې د رهولد ایسلاند کالج لیبریری آن بریستو چې د اندیانا پوهنتون کتابتون کې، دانیل رادوش، جوشوا کوهن او داوید پیتر سون چې ماخذونه یې راکړل او ایلینارد بیریارد د هاروارد له پوهنتون

ځخه تراد یونیون پروګرام چې د ټولو وروستو مرکو د خالیګاوو د ډکولو لپاره یې مواد راکړل.

هووارد زین او انتونی آرنوف برسېرنه مننه له: زما له ولس څخه چې ډېر وخته یې ما ته درس راکړی دی چې ولې جنګ لکه زهر دی، له سوت اید پرس څخه زما ملګرو، چې د سختې غوښتنې په شرایطو کې یې د دې کتاب ایدیت وکړ، په نړیوال سوسیالیستي سازمان او د جګړې ضد غورځنګ چې د روانو ښوونو او مرستو چې روز او هووارد کړي او په خاصه توګه له ګینا څخه چې تل زما په خیال کې ځای لري.

## Appendix A

EXCERPTS OF THE GENEVA PROTOCOLS

د جینوا د پروتوکولونو ځینې غوره شوې برخې: د ۱۹۴۹ کال د اګست د ۱۲ د جینوا د تړون ضمیمه پروتوکول چې په نړیوالو وسله والو شخړو کې د قربانیانو د ساتنې په اړوند دی (لومړی پروتوکول). د ۱۹۷۷ کال د جون ۸ نېټه له دویم څپرکي څخه «ولسي نفوس او غیرپوځیان» ۵۱ ماده د ولسي نفوسو ساتنه.

۱. ولسي نفوس او غیرپوځي افراد باید له پوځي عملیاتو څخه د پیدا کېدونکو خطرونو له عمومي ژغورنې څخه ګټه واخلي. د دې لپاره چې دې ژغورنو ته اغېزمنتوب ورکړل شي، باید لاندیني مقررات چې د نورو اړونده نړیوالو قوانینو سربېره باید په ټولو حالاتو کې په پام کې ونیول شي.
۲. په دې ډول ولسي نفوس او همدارنګه منفرد ولسي افراد باید د حملو هدف نه شي. د تېري عملیات یا ګواښونه چې د هغوی لومړنی هدف د ولسي نفوسو په منځ کې د ترهګرۍ د لمنې پراخېدل دي، منع دي.
۳. غیر پوځیان باید د دې برخې پر اساس له ژغورنې څخه ګټه واخلي، تر هغه وخته چې په دوښمنیو کې په سیده توګه برخه وانخلي.
٤. بې توپیره یرغلونه منع دي. بې توپیره حملې عبارت دي له:

الف: چې په مشخصو پوځي هدفونو باندې د ترسره کېدو لپاره يې لارښوونه نه کېږي.
ب: که چېرې په جګړه کې هدف څرګند نه وي، باید یرغل ونه شي.
ج: په پروتوکول کې یادونه شوې ده چې په جګړه او یرغل کې د هغو اغېزې هېڅکله محدودې نه شي پاتې کېدای، په هېڅ ډول باید پر پوځي – ملکي او یا ملکي ځایونو یرغل ونه شي.

۵. د نورو حالاتو په څېر په لاندې ډول حملې هم غیرعادلانه دي:
الف: بمباري په هر ډول او وسیله چې وي؛ په داسې حال کې چې څرګندوي چې ګویا مشخص پوځي هدف او یا پوځي ځایونه دي، په ښارونو، کلیو او نورو هغو ځایونو کې چه ګویا ملکي خلک اوسېږي په هېڅ ډول سره د حملو اجازه نشته.
ب: کېدای شي چې یوه حمله په تصادفي توګه د ولسي وګړو د مرګ یا ټپي کېدو سبب شي، چې پوځي هدفونوته تاوان واړوي، دا په ټولیز ډول د اټکل شویو مشخصو اوسېده پوځي ښېګنو سره تناقض لري.

**د اثر د ليکوال په باب**

هووارد زين د بوستون د پوهنتون متقاعد پروفيسور دی. نوموړی د متحده ايالاتو د ولسونو د تاريخ منلی ليکوال دی. زين د خپلو ادبي او تاريخي کارونو له امله د ادبي يادداښتونو په خاطر د لانان Lannan ادبي جايزه ترلاسه کړې ده او د سياسی ليکنو او فعاليتونو په خاطر يې د يوگينياي دابس EugeneV. Debs جايزه تر لاسه کړې ده.

زين د زيات شمېر اثارو ليکوال دی چې په دې لړ کې د زين لوستونکي او توبيوگرافيک اثر چې «تاسې نه شی کولی په روان گاډی کې بې پرې پاتې شئ» نومېږي او همدارنگه مارکس د سوهو په ننداره کې اثارو څخه عبارت دی، ډېر مشهور دي.

زين په بروکلين کې زېږيدلی او مخکې له هغه يې په دويمه نړيواله جگړه کې په هوايي ځواکونو کی د بم غورځوونکي په توگه کار کاوه. وروسته زين د سپيلمن Spelman په کالج کې د تاريخ د څانگې مشر شو. مخکې له هغه چې نوموړی د بوستون پوهنتون ته راشي په فعاله توگه يې د مدني حقوقو په غورځنگ کې کار کاوه. نوموړی اوس له خپلې مېرمنې روسلين سره په ماساچوست کې ژوند کوي او په پراخه پيمانه د تاريخ او معاصر سياست په باب ويناوې او لکچرونه ورکوي.

## Appendix B

SUGGESTIONS FOR FURTHER READING


١. Ahmad Eqbal. Eqbal Ahmad: Confronting Empire. Edited by David Barsamian. Cambridge: sought End Press, .٢٠٠٠

٢. Ahmad, Eqbal. Terrorism: Theirs and Ours. New York: Seven Stories Press/Open Media Pamphlet Series, .٢٠٠٢

٣. Chang, Nancy. Silencing Political Dissent: how the USA PATRIOT Act Undermines the Constitution. New York: Seven stories Press/Open Media Pamphlet Series, .٢٠٠٢

٤. Chomsky, Noam. ١١-٩. New York: Seven Stories Press/Open Media, books, .٢٠٠١

٥. Chomsky, Noam. Rogue States: The Rule of force in world Affairs. Cambridge: south End Press, .٢٠٠٠

٦. Chomsky Noam. Year ٥٠١: The conquest Continues. Cambridge: South end Press, .٢٠٠٠

٧. Hass, Amira, Drinking the Sea at Gaza: Days and Nights in a Land under Siege. Trans. Elana Wesley and Maxine Kaufman-Lacusta. New York: Henry Holt Owl Books, .٢٠٠٠

٨. Kolko, Gabriel. Century of War: Politics, Conflict, and Society since ١٩١٤. New York: New Press, .١٩٩٤

٩. Kolko, Gabriel. The Politics of War: The World and United States Foreign Policy, ١٩٤٥-١٩٤٣. New York: Vintage, .١٩٦٨

١٠. Lens, Sidney. The Forging of the American Empire: From the Revolution to Vietnam: A History of U. S Imperialism. New York: Thomas Y. Crowell Co, .١٩٧١

١١. Lindqvist, Sven. A History of Bombing. Translated by Linda Haverty Rugg, New York: New Press, .٢٠٠١

١٢. Rashid, Ahmed. Taliban: Militant Islam, Oil, and Fundamentalism in Central Asia. New Haven: Yale Universiy Pres/Nota Bene, .٢٠٠٠

١٣. Roy, Arundhati. Power Politics. ٢d ed. Cambridge: South End, Press, .٢٠٠١

١٤. E. B Said, Edward W. Covering Islam: How the Media and the Experts Determine How We See the Rest of the World, Rev. Ed. New York: Vintage Books, .١٩٩٧

١٥. Shalom, Stephen R. Imperial Alibis: Rationalising U. S Intervention After the Cold War. Boston: South End Press, ١٩٩٣. Zinn, Howard. Howard Zinn on War. New York: Seven Stories, Press, .٢٠٠١

١٦. ANTIWAR ORGANIZATIONS AND RESOURCES, CENTER FOR ECONOMIC AND SOCIAL RIGHTS, ١٦٢ Montague Street, ٢nd floor Brooklyn, NY, Fax: -٢٣٧ ٧١٨٠ ٩١٤٧,E-mail: rights@cesr. org www.cesr.org

١٧. EDUCATION FOR PEACE IN IRAG CENTER (EPIC) ١١٠١ Pennsylvania Avenue SE, Suite ٢Washington, DC -٢٠٠٠٣ ٢٢٢٩, Fax: (٢٠٢) ٠٧٢٥-٥٤٣E-mail: epicentre@igc. org www.saveageneration. org

١٨. I SHED, FELLOWSHIP OF RECONCILIATION PO Box ٢٧١ Nyack, NY ١٠٩٦٠٠٢٧١, STAR SHO, Fax: (٩١٤) ٤٩٢٤-٣٥٨E-mail:fornati@igc.org

١٩. Www.forusa.org

٢٠. INTERNATIONAL SOCIALIST ORGANIZATION, PO Box ١٦٠٨٥Chicago, IL ٠٠٨٥-٦٠٦١٦,E-mail: contact@internationalsocialist.org

٢١. www.Internationalsocialist.org

٢٢. IRAQACTION COALITION ٧٣٠٩Haymarket Lane Raleigh, NC ٥٤٣٢-٢٧٦١٥, RECTED AREAS RORONADOS Fax: (٩١٩) ٧٤٢٢-٨٤٦E-mail: iac@leb.net

٢٣. DESCOR Matera www.iraqaction.org

٢٤. PEACE ACTION, ١٨١٩H Street, NW, Suite ٤٢٠Washington, DC ٣٦٠٣-٢٠٠٠٦, Fax: (٢٠٢) ٩٧٦٢-٨٦٢, E-mail: info@peace-action.org

٢٥. www.peace-action.org

٢٦. VOICES IN THE WILDERNESS ١٤٦٠West Carmen Avenue Chicago, IL ٢٨١٣-٦٠٦٤٠Phone: (٧٧٣) ٧٨٤, E-mail: kkelly@igc.org www.vitw.org

٢٧. WAR RESISTERS LEAGUE ٣٣٩Lafayette Street, New York, NY ٢٧٨٢-١٠٠١٢, E-mail:wrl@warresisters.org, www.warresister.org

٢٨. ALTERNATIVE INFORMATION SOURCES, ALTERNATIVE RADIO David Barsamian PO Box ٥٥١ Boulder, CO ٠٥٥١-٨٠٣٠٦, Fax: (٣٠٣) ٠٥٩٢-٥٤٦, E-mail: ar@orci.com, www.alternativeradio.org

٢٩. FOREIGN POLICY IN FOCUS Institute for Policy Studies ١٥٧٣٣th Street, NW, Suite ١٠٢٠Washington, DC ٢١١٢-٢٠٠٠٥, Fax: (٢٠٢) ٧٩١٥-٣٨٧E-mail: leaverfpif@igc.org, www.foreignpolicy-infocus.org INTERNATIONAL SOCIALIST REVIEW, PO Box ٢٥٨٠٨٢

٣٠. Chicago, IL ٨٠٨٢-٦٠٦٢٥Phone: (٧٧٣) ٧٣٣٧-٦٦٥Fax: (٧٧٣) ٩٦٥١-٦٦٥E-mail: business@isreview .org www.isreview.org

٣١. IN THESE TIMES, ٢٠٤٠North Milwaukee Avenue, Chicago, IL ٤٠٠٢-٦٠٦٤٧, Fax: (٧٧٣) ٤١٨٠-٧٧٢E-mail: itt@inthesetimes.com, www.inthesetimes.org

٣٢. NO WAR COLLECTIVE, www.nowarcollective.com

٣٣. THE PROGRESSEIVE, ٤٠٩East Main Street Madison, WI ٢٨٦٣-٥٣٧٠٣, and Fax: (٦٠٨) ٣٣٧٣-٢٥٧E-mail: circ@progressive.org www.progressive.org

٦. SOCIALIST WORKER PO Box ٢٥٨٠٨٢Chicago, IL -٦٠٦٢٥ ٨٠٨٢, Fax: (٧٣) ٩٦٥١-٦٦٥E-mail: letters@socialistworker.org, www.socialistworker.org

٣٤. WAR TIMES, ١٢٣٠Market Street, PMB ٤٠٩, San Francisco, CA ٤٨٠١-٩٤١٠٢, E-mail: editorial@war-times. Org, www.war-times.org

٣٥. Z MAGAZINE, ١٨Millfield Street Woods Hole, MA -٠٢٥٤٣ ١١٢٢, Fax: (٥٠٨)٠٦٢-٤٥٧, E-mail: Lydia. sargent@zmag.org www.zmag.org

# NOTES

## CHAPTER:١-٩:١١

١. James P. Pinkerton, "Forget Elwa- U. S. Is Throwing the long bomb," Newsday (New York), ٢February ١٩٩٩, A٣٦

٢. Eric Schmitt and James Dao, " U. S Is Building Up Its Military Bases in Afghan Region, " New York Times, ٩January ٢٠٠٢, A١; "Preparing for a long Stay" (map), New York Times, ٩ January ٢٠٠٢, A١٠; Elena Listvennaya, "US Unit Shows Off New Base in Kyrgyzstan," Boston Globe, ١٠January ٢٠٠٢, A.١٢

٣. Marc W. Herold, "A Dossier on Civilian Victims of United States'Aerial Bombing of Afghanistan: A comprehensive Accounting" December ٢٠٠١(pubpages. unh. edu/~mwherold/Afghanistan. doc).

٤. Doug McKinlay,"Refugees Left in the Cold at 'Slaughterhouse' Camp," Guardian (London), ٣January ٢٠٠٢, .١٤

٥. Robert Fisk, "Osama bin Laden: The Godfather of Terror?" Independent, ١٥September ٢٠٠١, .٧

٦. Thomas L. Friedman," U. Ş Gulf Poicy: Vague 'Vital Interest," New York Times, ١٢August ١٩٩٠, ١:١. .٧

٧. Daniel Altman, "Diagnosis of World's Health focuses on Economic Benefit," New York Times, ٢١December ٢٠٠١, W.١

٨. Reuters, “Arthur Miller Spurns Invitiation by Johnson in Vietnam Protes," New York Times (International edition, ٢٨ September ١٩٦٥, .٢
٩. Edward R. Worlff, top Heavy: The Increasing Inequality of Wealth in America and What Can Be Done about It, updated ed. (New York: New Press, ٢٠٠٢), .٨
١٠. Derrick Z. Jackson, "Toothsome Tradeoff," Boston Globe, ٢٣, January ٢٠٠٢, A.١٥
١١. Noam Chomsky, ١١-٩, ed. Greg Ruggiero (New York: Seven Stories Press/Open Media book, ٢٠٠١), .٤٩-٤٨
١٢. ..١٢Samuel R. Berger, interview," Hunting bin Laden, “Frontline, PBS, and ١٣September .٢٠٠١
١٣. Howard Zinn," Just and Unjust War, "in Howard Zinn on War (New York: Seven Stories Press, ٢٠٠١), .١٧٨
١٤. Jo Thomas, "No sympathy' for Dead Children, McVeigh Says," New York times, ٢٩March ٢٠٠١, A.٢٢
١٥. Scott Simon, "Even Pacifists Must Support This War, "Wall Street Journal, ١١October ٢٠٠١, A.٢٢
١٦. Eqbal Ahmad: Confronting Empire, ed. David Barsamian (Cambridge: South End Press, ٢٠٠٠), ٨; Eqbal Ahmad, Terrorism: Theirs and Ours (New York: Seven Stories Press/Open Media Pamphlet Series, ٢٠٠١) .
٧. CHAPTER ٢: SEARCHING FOR COMMON GROUND
١٧. James Risen, "Taliban Chiefs Prove Elusive, Americans Say," New York Times, ٢٠December ٢٠٠١, B.١
١٨. Associated Press, “Military Response Is Not the Answer, Marchers Declare, " ٢٨October .٢٠٠١

١٩. Devi Athiappan," Peace Group Reaches Out to Shoppers," Newsday (New York), ١٧December ٢٠٠١, A.١٣

٢٠. Richard Falk, " Ends and Means: Defining a Just War," The Nation ٢٧٣, no. ١٣( ٢٩October ٢٠٠١): ١٥-١١. Falk later modified his views partially, writing, “With each passing day, my assessment shifts to reach the conclusion that the United States is waging an unjust war in Afghanistan and it is doing so in a manner that is likely to have severe blowback consequences.” See Falk, “Falk Replies," The Nation ٢٧٣, no. ١٧( ٢٦November ٢٠٠١): ٦١-٦٠, and Howard Zinn, Letter to the Editor, the Nation ٢٧٣, no. ١٧( ٢٦November ٢٠٠١): ٢. However, Falk later wrote that the "rapid collapse of the Taliban regime" had given him “a restored sense of proportionality between means and ends.” See Falk, “In Defense of 'Just War' Thinking,”The nation ٢٧٣, no. ٢١( ٢٤ December ٢٠٠١):.٢٣

٢١. Janny Scott, "Closing a Scrapbook Full of Life and Sorrow," New York Times, ٣١December ٢٠٠١, B .٦

٢٢. Carla Baranauckas et al, "The Victims," New York Times, ٣١ December ٢٠٠١, B.٦

٢٣. Rebbecca Blumenstein, “Many Relatives of Victims Feel Uneasy, Fear Innocent Will Die in Retaliation, “Wall Street Journal, ٨, October ٢٠٠١, A٨; Letter to the Editor, "Out of the Horror, a Test of Humanity, "New York Times, ٤January ٢٠٠٢, A٢٠; Jim Rutenberg,"A Handful of the Bereaved Become Advocates for All, " New York Times, ٢٩December ٢٠٠١, B.١

٢٤. Fairness and Accuracy in Reporting, "Incomplete Portrait," Extra! ١٥, no. ١(January-February ٢٠٠٢): ٥; "Corrections," New York Times, ٩December ٢٠٠١, ١: A.٢

٢٥. Mark Landler, "Sharing Grief to Find Understanding," New York Times, ١٧January ٢٠٠٢, A.١٦

٢٦. Pam Belluck, "New Wave of the Homeless Floods Cities' Shelters," New York Times, ١٨December ٢٠٠١, A.١١

٢٧. Jim Drinkard, "House Oks ١٠٠$B for Economy," USA Today, ٢٥

٨. October ٢٠٠١, ٥A .

٢٨. Seymour Melman, After Capitalism: From Managerialism to Workplace Democracy (New York: Knopf, ٢٠٠١).

٢٩. Peter Novick, the Holocaust in American Life (Boston: Mariner Books/Houghton Mifflin, ٢٠٠٠), .٢٢١

٣٠. Anthony Lewis, "Dust in Our Eyes," New York Times, ٤ December ٢٠٠١, A٢١. The Uniting and Strengthening America by Providing Appropriate Tools Required to intercept and Obstruct Terrorism Act was signed by Bush on ٢٦October ٢٠٠١. Adam Clymer, "Bush Quickly Signs Measure Aiding Antiterrorism Effort, New York Times, ٢٧ October ٢٠٠١, B.٥

٣١. Nancy Chang and the Centre for Constitutional Rights, The Silencing of Political Dissent: How the USA PATRIOT Act Undermines the Constitution (New York: Seven Stories Press/Open Media Pamphlet, Series, ٢٠٠١); Tim Weiner, " The C. I. A Widens Its Domestic Reach," New York Times, ٢٠ January ٢٠٠٢, ٤: ١; Linda Greenhouse,"!n New York Visit, O'Connor Foresees Limits on Freedoms," New York Times,

٢٩September ٢٠٠١'٨٥. ٣٢, Nancy Chang, Silencing of Political Dissent, .٤-٣

٣٢. Helen Dewar, "President to Sign Defense Bill," Washington Post, ١٥December ٢٠٠١, A٧; Mark Mazzetti," How to Fight in the Future," The Economist, special issue, The World in ٢٠٠٢, .٥٦

٣٣. James Dao, "Repreive for Pentagon Bufget," New York Times, ٢٥January ٢٠٠٢, A.١٨

٣٤. Jacob M. Schlesinger, "As Budget Deficits Loom, Many Promises, Programs Could Suffer," Wall Street Journal, ٢٤ Januray ٢٠٠٢, A١; Robert Pear and Robin Toner "Grim Choices Face States in Making Cuts in Medicaid," New York Times, ١٤January ٢٠٠٢, A.١

٣٥. Editorial, "Aid for the Poor," Financial Times (London), ١٩ July ٢٠٠١, .٢٠

٣٦. John Donnelly, "US Urged to Fund AIDS War in Africa," Boston Globe, ١٦March ٢٠٠١, A.١

٣٧. Editorial, "Mr. Bush's New Gravitas," New York Times, ١٢ October ٢٠٠١, A.٢٤

٣٨. Jerry L. Martin and Anne D. Neal, Defending Civilization: How Our Universities Are Failing America and What Can Be Done about It (Washington, D. C: ACTA, ٢٠٠١), ٣(online at: www. goacta. org/Reports/defciv. pdf); Emily Eakin, "On the Lookout for Patriotic Incorrectness," New York Times, ٧ December ٢٠٠١, B.٦

٣٩. John Ashcroft, "Excepts From Attorney General's Testimony, IZ, Before Senate Judiciary Committee," New York Times, ٧ December ٢٠٠١, B.٦

٤٠. Martin and Neal, Defending Civilization, ١٠; Eakin, "Patriotic Incorrectness," A.١٥

٤١. David J. Garrow, the FBI and Martin Luther King, Jr.: From "Solo" to Memphis (New York: W. W. Norton, ١٩٨١), .٤٩

٩. CHAPTER ٣: A PEACEFUL NATION?

٤٢. George Bush, "Bush's Remarks on U. S Military Strikes in Afghanistan," New York Times, ٨October ٢٠٠١, B.٦

٤٣. Vincent Jauvert, interview with Zbigniew Brzezinski, "Oui, la CIA est entrée en Afghanistan avant les Russes...," Nouvel Observateur (France) ١٧٣٢(January ١٩٩٨) (archives. nouvelobs. com/).

٤٤. John Kifner, "Forget the Past: It's A War unlike Any Other," New York Times, ٢٣September ٢٠٠١, ٤: .٨

٤٥. Eduardo Galeano, Upside Down: A Primer for the Looking-Glass world, trans. Mark Fried (New York: Picador USA, ٢٠٠١), .١٩٥

٤٦. SOA Watch (www. soaw. org); Frida Berrigan, "Beyond the School of the Americas: U. S Military Training Programs Here and Abroad," Arms Trade Research Center, World Policy Institute, May ٢٠٠٠; Dana Priest, "U. S Instructed Latins on Reveals," Washington Post, ٢١September ١٩٩٦, A١; Tina Rosenberg, "Another Hallowed Terror Ground," New York Times Magazine, ١٣January ٢٠٠٢, ٦: .٢٦

٤٧. Henry A. Kissinger, "The Pitfalls of Universal Jurisdiection," Foreign Affairs ٨٠, no. ٤(July/August ٢٠٠١): .٨٦

١٠. CHAPTER ٤: THE NEED FOR DISSENT

٤٨. President George W. Bush, Address to Joint Session of Congress, "September ١١, ٢٠٠١, Terrorist Attacks on the United States," Federal New Service, ٢٠September .٢٠٠١

٤٩. Andrew Sullivan, "America at War: America Wakes Up to a World of Fear," Sunday Times (London), ١٦September .٢٠٠١

٥٠. Richard L. Berke, "Bush 'Is My Commander,'Gore Declares in Call for Unity," New York Times, ٣٠September ٢٠٠١, .١:٢٩

٥١. Jim Rutenberg and Bill Carter, "Draping Newscasts with the Flag," New York Times, ٢٠September ٢٠٠١, C٨; Dan Rather, interview by Larry King "America's New War: Healing the Wound in America's Heart," Larry King Live, CNN, ٤ October .٢٠٠١

٥٢. Ed Hayward, "High School Speech by Peace Prof. Raises Ire," Boston Herald, ٢٠November ٢٠٠١, .٧

٥٣. Howard Zinn, a People's History of the United States: ١٤٩٢-Present (New York: HarperCollins, ١٩٩٩).

٥٤. Newton Tab, ٥December ٢٠٠١, .١١-٨

٥٥. Fareed Zakaria, "The Politics of Rage: Why do they hate us "Newsweek, ١٥october ٢٠٠١, ٢٢. ٥٧. Ahmad Rashid, Taliban: Militant Islam Oil and Fundamentalism in Central Asia (New Haven: Yale University press/ Nota Bene, ٢٠٠٠).

٥٦. .٥٨Stephen R Shalom, Imperial Alibis: Rationalizing U. S. Intervention after the Cold War (Boston: South End Press, ١٩٩٣).

٥٧. .٥٩John Reed, "Whose War?" (١٩١٧), in Shaking the World: John Reed's Revolutionary Journalism, ed. John Newsinger (Chicago: Bookmarks, ١٩٩٨), .٩٣

٥٨. David McCullough, John Adams (New York: Simon and Schuster, ٢٠٠١).

٥٩. The Espionage Act, H. R. ٢٩١, ٦٥th Cong., ١st sess., ch. ٣٠( ١٥ June ١٩١٧).

٦٠. .Frederick Douglass, "The Meaning of July Fourth for the Negro," in Frederick Douglass: Selected Speeches and Writing, ed. Philip S. Foner (Chicago: Lawrence Hill Books, ١٩٩٩), .١٩٠

٦١. Elisabeth Bumiller, "Military Tribunals Needed in Difficult Time, Bush says," New York Times, ٢٠November ٢٠٠١, B٥; William Safire, "Seizing Dictatorial Power," New York Times, ١٥November ٢٠٠١, A.٣١

٦٢. Elisabeth Bumiller, "Putting Name to Bush Justice Dept.: Kennedy," New York Times, ٢١November ٢٠٠١, A.١٤

٦٣. Safire, "Seizing Dictatorial Power," A.٣١

٦٤. Elisabeth Bumiller, "Bush Keeps a Grip on Presidential Paper," New York Times, ٢November ٢٠٠١, A.٢٢

٦٥. Alan Duke, "Doubts Plagued LB) on Vietnam Early in the War," CNN, ١٥February ١٩٩٧; Michael R. Bescholss, Reaching for Glory: Lyndon Johson's Secret White House Tapes, ١٩٦٥-١٩٦٤(New York: Simon and Schuster, ٢٠٠١).David E. Sanger, "New Tapes Indicate Johnson Doubted Attack in Tonkin Gulf," New York Times, ٦ November ٢٠٠١, A .١٨

**CHAPTER ٥: WAR ON CIVILIANS**

٦٦. Gabriel Kolko, Century of War: Politics, Conflict, and Society Since ١٩١٤(New York: New Press, ١٩٩٤), ٤٧٠; Randall Forsberg, Jonathan Dean, and Saul Mendlovitz, "Global Action to prevent War," Boston Review ٢٤, no. ١(February-March ١٩٩٩): .٤

٦٧. Sven Lindqvist, A History of Bombing, trans. Linda Haverty Rugg (New York: New Press, ٢٠٠١), .٥

٦٨. Lindqvist, History of Bombing, .١٠٤-٨٣

٦٩. Lindqvist, History of Bombing, ٩١

٧٠. Lindqvist, History of Bombing, .١٠٧

٧١. Alfonso A. Narvaez, "Gen. Curtis LeMay, and Architect of Strategic Air Power, Dies at ٨٣," New York Times, ٢October ١٩٩٠, B.٦

٧٢. Barton Gellman, "U. S. Bombs Missed ٪٧٠of Time," Washington Post, ١٦March ١٩٩١, A.١

٧٣. Barton Gellman, "Allied Air War Struck Broadly in Iraq," Washington Post, ٢٣June ١٩٩١, A١; Gellman, "U. S. Bombs Missed," A.١

٧٤. Kirk Johnson, "Afghan Caves, an Egyptian courtroom and the Trade Center Toll," New York Times, ٢١November ٢٠٠١, B١; Elizabeth Becker and Eric Schmitt, "U. S. Planes Bomb a Red Cross Site," New York Times, ٢٧October ٢٠٠١, A.١

٧٥. Indira A. R. Lakshmanan, "UN's Peaceful Mission Loses ٤to War," Boston Globe, ١٠October ٢٠٠١, A.١

٧٦. Tim Wiener, "U. S. Bombs Hit ٣Towns, Afghans Say," New York Times, ٢December ٢٠٠١, B٢; Tim Wiener, "Villagers

Yearn for the Old, Eternal Afghanistan," New York Times, ٣ December ٢٠٠١, B .٥

٧٧. David Shaw, "Media Under Public Barrage Over Content of War Coverage," Los Angeles Times, ١٨November ٢٠٠١, A٨; Gay Alcorn, "News of Afghan Dead Is Buried," The Age (Melbourne), ١٢January ٢٠٠٢, .١٧

٧٨. Jim Mannion, "Pentagon Acknowledges bomb Went Astray in Kabul, Heart, "Agence France-Presse, ٢٤October .٢٠٠١

٧٩. Carol Morello, "Tight Control Marks Coverage of Afghan War," Washington Post, ٧December ٢٠٠١, A٤٣; Patrick E. Tyler, "Powell Says U. S. will stay in Iraq 'For Some Months to Come," New York Times, ٢٣, March ١٩٩١, .١:١

٨٠. Said Mohammad Azam, "UN ways IS Bombs Struck Mosque, Village as Civilian Casualties Muont," Agence France-Presse, ٢٥October, .٢٠٠١

٨١. John Donnelly, "Unintended Victims Fill Afghan Hospital," Boston Globe, ٥December ٢٠٠١, A.١

٨٢. Barry Bearak, "In Village Where Civilians Died, Anger Cannot Be Buried," New York Times, ١٦December ٢٠٠١, .١:٣٣

٨٣. Morello, "Tight Control," A٤٣; Michael R. Gordon, "Military Is Putting Heavier Limits on Reporters' Access," New York Times, ٢١October ٢٠٠١, ١: B.٣

٨٤. Jules Crittenden, "' Air Supremacy'Achieved," Boston Herald, ١٠October ٢٠٠١, .٣

٨٥. Howard Zinn, "One Iraqi's Story," in Iraq Under Siege: The Deadly Impact of Sanctions and War, ed. Anthony Arnove (Cambridge: South End Press, ٢٠٠٠), .١٠٥

**د محمد اکبر کرگر لنډه پیژندګلوې**

محمد اکبر کرګر د محمد امان زوی په ۱۳۳۲هجري شمسی کال د کونړونو د نورګل ولسوالۍ په مزار دره کې په یوه بزګره کورنۍ کې زیږیدلی دی.

ده خپلې لومړنۍ زده کړې د مزار درې په لومړني ښوونځي کې ترسره او بیا د کابل د ابن سینا په عالي لیسه کې د لیلیه زده کوونکي په توګه په درس پیل وکړ ـ په ۱۳۵۳ کال د کابل پوهنتون د ادبیاتو او بشري علومو په پوهنځي کې شامل او په ۱۳۵٦ کال د دغه پوهنځي د فلسفې او ټولنیزو پوهنو له څانګې فارغ شو ـ کرګر ان له لسم ټولګي څخه د پښتو ټولنې د زیرې په جریده کې په لیکلو پیل وکړ او بیا د هیواد د نورو خپرونو سره هم همکار پاتې شو ـ له فلسفې زده کړو سره یې په ښوونځي کې مینه پیدا شوه او په همدې موخه د ځینو با تجربه استادانو څخه یې په انفرادي توګه د فلسفې زد ه کړو درسونه تعقیب کړل ـ له پوهنتون څخه د فراغت نه ورورسته یې د افغانستان د علومو اکادیمي د پښتو څېړنو په نړیوال مرکز کې په کار پیل وکړ او د۱۳۵۸ کال په لومړیو وختونو کې سیاسي بندې شو ـ له زندان څخه وروسته سملاسي دثور انقلا ب دحقیقت په ورځپاڼه کې په کار پیل وکړ ـ په ۱۳٦۰ کال کې د عسکري خدمت تر بشپړولو وروسته د رادیو افغانستان په اداره کې لومړی د مرستیال او بیا د خپرونو د لوي ریس په توګه وټاکل شو ـ د۱۳٦۴ کال د جدي په میاشت کې د افغانستان د چاپ او خپرونو د دولتي کمیټې د مشر په توګه له رتبې څخه په خارج (وزارت پوست) بست کې وټاکل شو ـ په ۱۳٦۵ کال کې د

کابل پوهنتون د فلسفي او ټولنیزو علومو په پوهنځي کې د اسیستانت په توگه وټاکل شو چې د یو ه علمي اثر د لیکلو په نتیجه کې یې د پوهنیارۍ علمي رتبه ترلاسه کړه. په ۱۳٦۷ کال کي د افغانستان د خلک دموکراتیک گوند دگوندي نشراتو چارې یې هم پر مخ وړلې او په ۱۳٦۹ کال کې د افغانستان د لیکوالو د ټولنې د منتخب مرستیال په توگه وټاکل شو ـ تر ۱۹۹۲ کال پورې د لیکوالو د ټولنې مرستیال او له هغه وروسته په پیښور کې د نوی کور نوی ژوند په پروژه کې د لیکوال یا سکرپټ لیکونکي او بیا د مالوماتو د راټولو لو د څانگې مسوول وټاکل شو.

کرگر په ۱۹۹۹ کال بریتانیا ته کډوال شو او له ۲۰۰۴ کال نه تر ۲۰۱۲ کال پورې د ژبو د زده کړو په کالج کې د پښتو ژبې دښوونکي په توگه دنده تر سره کړه.

اکبر کرگر په ۱۳۵۲ کال کې په خپل کلي کې واده کړی چې پنځه لورگانی اویو زوی لري ـ ټول اولادونه یې له پوهنتوني زده کړو څخه برخمن 'اکادیمک 'لیسانس ' فوق لیسانس او د پی اچ ډې تر کچې زده کړي لري ـ

کرگر لیکوال څېړونکي نقاد اوکیسه لیکوال دی ـ د هغه زیات شمیر آثار د هیواد په مطبوعاتو کې خپاره شوي دي .

اکبر کرگر په ۱۹۹۰ کال کې د اطلاعاتو اوفرهنگ په وزارت کې دافغانستان دجمهوریت دفرهنگي پالیسۍ د تدوین اوجوړولو ددرې کسه ییز کمیسون غړی و.

د اکبر کرگر چاپ شوي آثار په دې ډول دي:

**د لنډو کیسو په برخه کې :**

١. شیبې. د لنډو کیسو ټولګه

٢. سینده څه سینده بهیږه. د لنډو کیسو ټولګه

٣. د زمانو سندره. د لنډو کیسو ټولګه

٤. کله چې ماشومان سندره وایي. د لنډو کیسو ټولګه

٥. انځورونه که هینداره. د لنډو کیسو ټولګه

٦. یادونه اونکلونه. د لنډو کیسو ټولګه د ٢٠١٣ کال چاپ

٧. د غوایي هډوکي ناولیټ چاپ

٨. واټنونه. ناولیټ چاپ

٩. ٩له تورتمه روایت دې. د لنډو کیسو ټولګه ٢٠١٦ کال چاپ

١٠. داستاني کلیات د ټولو داستاني ټولګو بیا چاپ (د ستورو شمیر د ټولګي په ګډون ) چاپ کال ١٣٩٧

١١. یوه ورځ لکه ټول عمر (ناول ) کال چاپ ٢٠٢٠

**څیړنیز آثار :**

١٢. څو ادبي یادونې. د ادبي مقالو ټولګه

١٣. غني د شګو په محل کې. د غني خان د ژوند اوشعر په اړوند

١٤. په حالنامه کې دبایزید روښان عرفاني او فلسفي څیره (چې د حکیم ناصر خسرو جایزه یې هم اخیستې ده)

١٥. د شعر درناوی. چاپ (د پښتو د معاصر شعر په اړوند یوه څېړنه)

١٦. رحماني ليدتوگه. چاپ (د رحمان بابا د تصوفي افكارو يوه څېړنه)

١٧. پښتو گړنې. (په مجلو کې چاپ شوی دی)

١٨. د ميرزاخان عرفاني اوفلسفي نړۍ ليد. چاپ ٢٠١۴

١٩. د پښتو ژبې د زده کړې درسي کتاب. (د داکتر جنيد شريف سره گډ کار ) په متحده ايالاتو کې چاپ شوي دي.

٢٠. سيندونه او اندونه. د مقالو ټولگه د پوهنيار سيد اصغر هاشمي ټولونه چاپ ٢٠١٦

٢١. فرهنگي بحثونه. د فرهنگي اوټولنيزو مقالو ټولگه کال چاپ ٢٠١٦

٢٢. پښتون شاعر خان عبدالغني خان د شعر او تفکر په باب فلسفي څېړنه. (ماته يو درياب دنور را ) کال چاپ ٢٠١٦

٢٣. بايزيد روښان او اشراقي معرفت د علومو اکاديمي. چاپ - ٢٠١٩

٢٤. هنر ښايست او ادب له انگليسي ژبي څخه د فلسفي مقالو ژباړه. چاپ ٢٠٢٠کال

٢٥. سيندونه اواندونه. دويم ټوک د فلسفي ادبي مقالو ټولگه ٢٠٢٠

٢٦. رحماني ليدتوگه. له نويو زياتونو او نويو څېړنو سره (د رحمان بابا د افكارو او ژوند په باب ) ٢٠٢٠كال

٢٧. اقبال او د شاعر د خودۍ قلمرو . چاپ كال ٢٠١٧

٢٨. د استاد داكتر شجاعي د فلسفي مقالو ټولگه. ٢٠١٧ چاپ

٢٩. ٢٩ـكيسه تېر مهال اوتولنيز ناخود اگاه دكيسه ليكنې په باب اساطيري او ارواپوهنيه څېړنه ـ ٢٠١٨

٣٠. ادبيات او د انسان د ننې نړۍ. (دفرنتس كافكا انورو په باب څېړنه ) چاپ كال ٢٠٠٥

**ژباړې:**

٣١. كيسې اوحماسې. ژباړه اوڅېړنه

٣٢. استيتيک مقولي. د هنر دفلسفي په باب رساله

٣٣. ترهگري اوجگړه. (دهوارد زين ليكنه )له انگريزي څخه

٣٤. قران لپ ټاپ كلاشينكوف. له انگريزې ژباړه د ٢٠١٣ كال چاپ ـ (دانتونيو گوشتيزو ليكنه )

٣٥. د لنډو كيسو اتمه ټولگه. ناچاپ

٣٦. انسان اوجهان د عرفان له ليده. ناچاپ

٣٧. فلسفه او ادبيات. ناچاپ

٣٨. يادښت : د حضرت امام حسين او كربلا دپيښو اړوند پښتو شعرونو تدوين او ترجمه چې په عربي ژبه چاپ شوي دي .

٣٩. المدخل شعر البشتو. ( دپښتو ژبي اوادبياتو په باب څیړنه ) چې په عربي ژبه د حسینیه دایرت المعارف له خوا چاپ شوي دې . د محمد صادق محمد الکرباسي عربي ژباړه

٤٠. دیوان شعر البشتو. په عربي ژباړل شوي او چاپ شوی ـ د محمد صادق الکرباسي عربي ژباړه اوچاپ

٤١. متفرقه او قنبرعلي اورکزي اشعار .

٤٢. د لنډو کیسو نوی ټولگه. (کلونه تورتمونه ) ناچاپ

***

کتاب «مهمانسرا و شوربای استخوان گاو» نوشته اکبرکرگر و برگردان نصیر سهام نشر شده توسط انتشارات پرچم از لینک زیرین کتابخانه راه پرچم قابل دانلود است:

https://rahparcham١.org/%da%a٩٪d٨٪aa%d٨٪a٧٪d٨٪a٨-%d٩٪٨٥٪d٩٪٨٧٪d٩٪٨٥٪d٨٪a٧٪d٩٪٨٦٪d٨٪b٣٪d٨٪b١٪d٨٪a٧-%d٩٪٨٨-%d٨٪b٤٪d٩٪٨٨٪d٨٪b١٪d٨٪a٨٪d٨٪a٧٪db%٨c-%d٨٪a٧٪d٨٪b٣٪d٨٪aa%d٨٪ae%d٩٪٨٨٪d٨٪a٧٪d٩٪٨٦-%da%af%d٨٪a٧٪d٩٪٨٨-%d٩٪٨٦/

